| | | |
|---|---|---|
| | يرغل مخه نيسي.<br>۴. د مسلمانانو اتفاق او يووالى دا ايجابوي چې ټول مسلمانان په حقوقو او واجباتو کې يو له بل سره برابر وي او ټولنيز عدالت د دوی تر منځ پلی شي. | |
| | **کورنى کار:**<br>ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د حديث شريف متن له ترجمې سره په خپل کور کې حفظ کړي او همدارنګه دوی مکلفوي چې په خپلو کورنو کې د اتفاق او يووالي د ګټو او د بې اتفاقۍ د زيانونو په اړه يو مخ مقاله وليکي. | زده‌کوونکي دې خپله کورنۍ دنده وليکي. |

## دریم لوست:

**عنوان: دین خیر غوښتنه ده**

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقې.**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

٢. د حدیث شریف متن او لوست په صحیح ډول ولوستلای شي.

٣. د لوست مفهوم په سم ډول زده کړي.

٤. د حدیث شریف د کلمو پر معنا سم وپوهېږي.

٥. یو بل ته خیر غوښتنه وکړای شي.

٦. د زده‌کوونکو په وجود کې باید د خیر غوښتنې او خیر قبلولو حس پیاوړی کړل شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په حدیث شریف کې د (النصیحة) کلمه راغلې ده، دا کلمه د هغو کلمو له جملې څخه ده چې ډېرې معناوې او یو مفهوم لري، کله نا کله دغه عبارت (**الدين النصيحة**) له پیغمبر صلی الله علیه وسلم څخه په تکراري ډول اورېدل شوی دی، چې دا د نصیحت په ډېر ارزښت دلالت کوي، لکه په حدیث شریف کې راغلي دي: ((**الدين النصيحة، الدين النصيحة، الدين النصيحة**)) د دغو الفاظو تکرار د دې دلیل دی چې د اسلام سپیڅلی دین د ایمان، احسان عقیدې او عمل مجموعه ده دا ځکه چې د جبرئیل علیه السلام په حدیث شریف کې کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه هرې پوښتنې ته قناعت ورکوونکی ځواب ورکړ داسې یې وفرمایل: (**هذا جبريل أتاكم يعلمكم دينكم**) او دا ښکاره خبره ده چې جبریل علیه السلام د اسلام، ایمان، احسان او د قیامت د ورځې په اړه ترې پوښتېدلی و. نو لدې څخه وروسته نبي کریم صلی الله علیه وسلم دا ټول د دین تر عنوان لاندې جمع کړل.

دا حدیث له فصیحو او بلیغو احادیثو څخه شمېرل کېږي، ځکه چې ډېرې لویې معنا وې او ډېر لوی محتویات یې په ډېرو لنډو الفاظو کې را ټول کړي دي، دلته دا پوښتنه مطرح کېږي: چې نصیحت څه شی دی؟ نصیحت اخلاص او اصلاح ته ویل کېږي نو کله چې نصح یا نصیحت د اخلاص معنا ورکوي، نو له چا سره اخلاص؟ ځواب: ((**لله، ولكتابه، ولرسوله، ولأئمة المسلمين وعامتهم**)) **ژباړه:** د الله تعالی لپاره، د هغه د کتاب ، (قرآن کریم) لپاره د هغه د رسول ، (حضرت محمد صلی الله علیه وسلم لپاره ، د مسلمانانو د امامانو او مشرانو لپاره او د ټولو مسلمانانو لپاره. لدې څخه وروسته نور څه پاتې شول؟ هېڅ شی پاتې نه شول.

په یو بل حدیث شریف کې پیغمبر صلی الله علیه وسلم اخلاص او نیکي په هر څه کې لازم ګڼلي دي. او داسې یې فرمایلي دي: «**إن الله كتب الإحسان على كل شيء** ...». ژباړه: الله تعالی په هر شي کې نیکي او اخلاص واجب او لازم ګرځولي دي.

**د کلمو معنا:**

١. **متنفذين:** ترسره کوونکي.

٢. **فلاح:** بریا.

۳. **مصايب:** د مصيبت جمع او د ستونزو په معنا دی.

٤. **مترادف:** يو له بل سره په معنا کې يو شان.

٥. **نواهي:** د نهي جمع، او هغه څه ته ويل کيږي چې له سرته رسولو څخه يې منع شوې وي.

**د تدريس تگ لاره:**

نمونوي قرائت، پوښتنې او ځواب، انفرادي او گروپي، توضيحي او تشريحي.

**مرستندويه درسي توکي:** درسي کتاب، تخته، تباشير او کاک کاغذ.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده‌کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **مقدمه:**<br>– ښاغلی ښوونکی ټولگي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، او د الله تعالی له حمد او ثناء او پر پيغمبر صلی الله عليه وسلم باندې لـه درود ويلو، د زده‌کوونکو د احوا ل پوښتنې، د ټولگي تنظيم او د حاضرۍ له اخيستلو وروسته مخکينی لوست د کورنۍ دندې په کتلو سره چې په هغې کې د حديث شريف حفظ هم شامل دی ارزوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د نوي لوست پـه اړه د انگېـزې پيـدا کولـو او نـوي لوست ته د عنوان پيدا کولو په غرض لـه څوتنـو زده‌کوونکـو څخـه پوښتنې کوي، لکه: څوک کولای شي چې د ښه انسان صفتونه بيـان کړي؟ | زده‌کوونکي دې د تېر لوست حـديث شـريف لـه مخـې ولولي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښوونکی چې کله د حديث شريف لـه حفـظ او مقـالو ليکلـو څخه ښه ډاډه شي نو د نوي لوست عنوان چې (دين خير غوښتنه ده) د تختې پر مخ ليکي، وروسته زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن په پټه خوله ولولي، يو تن زده‌کوونکی د حديث شـريف متن په ښکلي او ښائسته خط پرتخته ليکي.<br>– کله چې زده‌کوونکي لوست په پټه خوله تکراروي پدې وخـت کـې ښاغلی ښوونکی د لوست ستونزمنې کلمې پر تخته ليکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي لـومړی د لوست متن دوه ځلې په لوړ آواز لولي.<br>– ښاغلی ښوونکی څو تنه زده‌کوونکـو تـه لارښـوونه کـوي تـر څـو د حديث شريف متن ولولي او خپله د لوستلو پـه وخـت کـې هغـوی خاري غلطۍ يې اصلاح کوي، په عين وخت کې د لوست سـتونزمن لغات د تختې پر مخ ليکي.<br>– کله چې ښاغلی ښوونکی د حديث شريف د متن له صـحيح لوسـتلو | زده‌کـوونکي دې لوسـت پـه پټه خوله مطالعه کړي.<br><br>زده‌کـوونکي دې خپلـو کتابونو ته ځير شي.<br><br>زده‌کـوونکي دې د حـديث شـريف د مـتن سـتونزمنې کلمې پـه خپلـو کتـابچو کـې وليکې. |

| | ځخه ډاډه شي د هغه په ترجمه او شرحه پیل کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف له ترجمې او د ستونزمنو کلمو له معنا کولو ځخه وروسته د حدیث شریف د ګټو په اړه له زده‌کوونکو سره مباحثه کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو سره د حدیث شریف د ګټو د مباحثې په جریان کې د حدیث شریف ټولې ګټې په لنډ ډول پر تخته لیکي او له زده‌کوونکو ځخه غواړي چې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده‌کوونکي دې د حدیث شریف ګټې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په لاندې پوښتنو ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>ښاغلی ښوونکی لوست په لاندې ډول لنډوي:<br>۱. نبي کریم صلی الله علیه وسلم نصیحت دین ګڼلی دی.<br>۲. د خیر په ټولو ډولونو باندې عمل کول او د شر له ټولو ډولونو ځخه ځان لرې ساتل دین دی.<br>۳. په ټولو مؤمنانو باندې لازمه ده چې یو د بل لپاره په ټولو کارونو کې د خیر غوښتونکي واوسي.<br>۴. په هر مسلمان باندې د هر مقام او منزلت خاوند چې وي لازمه ده تر ځو د نورو خلکو نصیحت ته غوږ کیږدي. | زده‌کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ ونیسي. |
| | **کورنی کار:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده سپاري چې د حدیث شریف متن حفظ کړي او په عین وخت کې د خیر غوښتنې په اړه یوه مقاله ولیکي. | زده‌کوونکي دې خپله کورنۍ دنده ولیکي. |

## څلورم لوست:

**عنوان: د اړیکو پرېکول**

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقې.**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

۱. د حدیث شریف متن په صحیح ډول ولوستلای شي.
۲. د لوست مفهوم په سم ډول زده کړي.
۳. د حدیث شریف د کلمو معنا زده کړي.
٤. د مینې او صله رحمۍ ارزښت مراعات کړل شي.
٥. له خپلو ملګرو سره د اړیکو له پرېکولو څخه ځانونه وساتي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په حدیث شریف کې راغلي دي چې کله که د دوو مسلمانانو تر منځ کومه ستونزه او مشکل پیدا شي نو باید یو له بل سره د اړیکو له پرې کولو څخه ډډه وکړي، د دوی تر منځ د نظر اختلاف باید دې حد ته ونه رسېږي چې په خپلو منځونو کې جګړه وکړي، په قدسي حدیث شریف کې الله تعالی د اړیکو له پرېکولو څخه په کلکه منعه کړې ده، ځرنګه چې مسلمانان په خپلو منځونو کې وروڼه دي نو مناسبه نه ده چې یو له بل سره اختلاف او کرکه ولري باید وویل شي چې د اختلاف، تفرقې او جدایي لامل د اسلام د دین په مفاهیمو باندې په دقیقه توګه نه پوهېدل دي، چې ډېر مسلمانان د اسلام د دین له مفاهیمو څخه بې خبره دي، که چېرې پدې پوه شي چې اسلامي وروګلوي، خلکو ته د هغوی د غلطیو عفوه او مغفرت څومره اجر او ثواب لري نو حتماً به خلك د نېکو کارونو کولو ته را وبولي او د اسلام په لارښوونو به عمل وکړي.

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: (**ألا أخبركم بخير من كثير من الصلاة والصدقة؟ قالوا: بلى. قال: إصلاح ذات البين وإياكم والبغضة فإنها (هي) الحالقة**) ژباړه: آیا تاسو له ډېرو لمونځونو کولو او زیاتو صدقو له ورکولو څخه په ښه شي خبر نه کړم؟ ملګرو یې وویل: هو، خبر مو کړه. رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د خلکو په منځ کې صلح کول دي او له کرکې څخه ځانونه لرې وساتئ، ځکه چې کرکه نېکی له منځه وړي.

هېڅکله الله تعالی دا روا نه ګڼي چې یو مسلمان له بل مسلمان څخه خپل مخ واړوي، یا خبرې کول او سلام اچول ورسره بند کړي.

لدې څخه دا څرګندېږي چې د اړیکو پرېکول او نفرت د هېڅ مسلمان په وړاندې روا نه دی، او هېڅکله د اسلام مبارک دین دا اجازه نه ورکوي چې یو مسلمان له بل مسلمان سره خپلې اړیکې پرې کړي.

**د کلمو معنا:**

۱. **بیعت:** وعده.
۲. **تقصیر:** کمی.
۳. **مکدر:** تیاره.

**د تدریس تګلاره:**
نمونوي قرائت، پوښتنې او ځواب، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي تکرار.
**مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، تخته، تباشیر، قلم او د امکان په صورت کې کاڵک کاغذ.
**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>– ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، د الله تعالی له حمد او ثناء څخه وروسته د زده‌کوونکو د احوا ل پوښتنه کوي، د ټولګي له تنظیمولو او د حاضرۍ له اخیستلو وروسته مخکینی لوست ارزوي، لکه: د حدیث شریف متن د چا حفظ دی؟ حضرت تمیم بن اوس الداري په کوم کال باندې په اسلام مشرف شوی دی؟<br>– ښاغلی ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې پیداکولو او نوي لوست ته د عنوان پیدا کولو په غرض له څوتنو زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: څوک ویلای شي چې له خپلوانو سره باید څرنګه چلند وکړو؟ | زده‌کوونکي دې د ټولګي نظم مراعات کړي.<br>زده‌کوونکي دې د پوښتنو ځواب ووایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښوونکی د صحیح ځواب له اورېدلو وروسته د نوي لوست عنوان چې (د اړیکو پرېکول) دی د تختې پر مخ باندې لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې یې له خپلو ځانونو سره یاد داشت کړي او په خپله پدې وخت کې د (بیعت، تقصیر او مکدر) کلمې له معنا سره پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ستونزمنو کلمو د لیکلو تر څنګ د حدیث شریف متن چې په کاڵک کاغذ لیکل شوی دی، د تختې پر مخ ځوړندوي.<br>– ښاغلی ښوونکی له دوو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي تر څو د لوست څنډیز عنوانونه پر تخته ولیکي چې یو یې عنوان ورته وایي او بل یې لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف متن دوه ځلې په لوړ او مناسب آواز په پوره دقت لولي، وروسته څو تنه زده‌کوونکي د هغه په ویلو مکلفوي، تر څو د زده‌کوونکو په واسطه د لوست له صحیح لوستلو څخه پوره ډاډمن شي.<br>– ښاغلی ښوونکی د لوست د صحیح لوستلو له ډاډ وروسته پر زده‌کوونکو لومړی د حدیث شریف د متن ستونزمنې کلمې معنا او وروسته د حدیث شریف ترجمه کوي او دغه کار دوه ځلې تکراروي تر څو زده‌کوونکي د حدیث شریف معنا په صحیح ډول | زده‌کوونکي دې لوست په پټه خوله مطالعه کړي.<br>دوه زده‌کوونکي دې د لوست عنوانونه ولولي او ولیکي.<br>زده‌کوونکي دې د حدیث شریف متن ولولي.<br>زده‌کوونکي دې د لوست ترجمې ته غوږ شي. |

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| | زده کړي او ښوونکی ترې ډاډمن شي.<br>– ښاغلی ښوونکی له څنډیزو عنوانونو څخه په ګټه اخیستلو د لوست مفاهیم او مطالب زده‌کوونکو ته د مباحثې په ډول وړاندې کوي، د حدیث شریف د ګټو او د مسلمانانو په ژوند کې د هغو د اغیزو په اړه د دوی نظرونه څرګندوي او پر تخته یې لیکي، له زده‌کوونکو څخه هم غواړي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی له یو تن زده‌کوونکي څخه غواړي تر څو د حدیث شریف د راوي ژوند پاڼه د کتاب له مخې ولولي او له دویم زده‌کوونکي څخه غواړي تر څو هغه په شفاهي ډول خلاصه کړي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په څو ګروپونو وېشي او له دوی څخه غواړي چې د صله رحمی ګټې او د اړیکو پرېکولو زیانونه په ترتیب سره ولیکي او له هغه وروسته د هر ګروپ نماینده د خپل کار پایلې د ټولګیوالو په وړاندې لولي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ګروپي کارونو له پای ته رسېدلو او د نماینده ګانو په واسطه د پایلو له ویلو وروسته هغه ارزوي او په مختلفو ډلو باندې یې وېشي. | زده‌کوونکي دې د حدیث شریف ګټې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br><br>دوه تنه زده‌کوونکي دې د حدیث شریف راوي معرفي کړي.<br><br>زده‌کوونکي دې په مناسبو ګروپونو ووېشل شي او د موضوع په اړوند دې یو له بل سره خبرې وکړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په لاندې پوښتنو ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>پورتنی لوست په لاندې ډول لنډولای شو:<br>۱. د اسلام مقدس دین هیڅچا ته دا اجازه نه ورکوي چې له خپل ورور سره له دریو ورځو زیاتې خپلې اړیکې پرې کړي.<br>۲. د اسلام د دین خپلو پیروانو ته دا پیغام دی چې په خپلو کې تل نېکې اړیکې وساتي.<br>۳. کـه چېرې د دوو مسلمانانو تر منځ اختلاف راشي پر نورو مسلمانانو لازمه ده چې د دوی تر منځ صلح وکړي.<br>٤. کله چې دوه تنه مسلمانان یو له بل څخه ناراضه او خفه شي نو باید یو بل ته سلام واچوي او هر یوه چې پدې کار کې لومړیتوب وکړ هغه تر هغه بل ډېر متقي او ښه سړی دی. | زده‌کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ ونیسي او هغه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
| | **کورنی دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي تر څو حدیث شریف حفظ کړي او له هغه وروسته دوی ته د اړیکو د پرېکولو زیانونه په ګوته کوي او ورڅخه غواړي چې پدې اړه یوه مقاله ولیکي چې له یوه مخ څخه کمه نه وي. | زده‌کوونکي دې د یاد داشت وړ کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او خپل کورنی کار دې تر سره کړي. |

## پنځم لوست:

**عنوان:** دوه مخي

**مخ:**

**وخت:** يو درسي ساعت (٤٥) دقيقې.

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

١. د حديث شريف متن په صحيح ډول ولوستلای شي.

٢. د لوست مفهوم او معنا په سم ډول زده کړي.

٣. د نېکو اخلاقو مبادي وپېژني.

٤. د دوه مخی له ناوړه صفت ځخه ځانونه وژغوري.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

لکه څرنګه چې رسول الله صلی الله عليه وسلم پدې حديث شريف کې فرمايلي دي: «**تَجِدُونَ شَرَّ النَّاسِ يومَ القِيامَةِ ذَاالوَجهَينِ** » يعنې تر ټولو بد سړی هغه څوک دی چې دوه مخی وي، چې ځينې خلکو ته د مهربان دوست او خواخوږي په څېره کې ښکاره کيږي او ځينو نورو خلکو ته په بله څېره کې ځان ښکاره کوي، پدې معنا چې يوې ډلې ته يو څه وايي او بلې ډلې ته بل څه وايي، تر څو د دواړو لوريو تر منځ د دوستی اړيکې له منځه يوسي، الله تعالی د دې کسانو په اړه فرمايلي دي: ((**مُذَبْذَبِينَ بَيْنَ ذَلِكَ لَا إِلَى هَؤُلَاءِ وَلَا إِلَى هَؤُلَاءِ وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهُ سَبِيلًا**)) [النساء : **١٤٣**] ژباړه: د کفر او اسلام تر منځ حيران او زړه نازړه دي. نه پوره دې خوا ته دي نه پوره ها خوا ته. څوک چې خدای ګمراه کړی وي ته هغه ته کومه لاره نه شې ميندلای.

دا ټول د منافقينو له عاداتو، ځانګړتياوو او صفتونو ځخه دي، چې په هېڅ حالت کې برقرار کېدای نه شي، کله د مسلمانانو په صف کې درېږي او کله د کافرانو په صف کې درېږي، هر وخت ځانګړی خاصيت او صفت د خپل ځان لپاره غوره کوي او پدې هيله وي چې دا کار به د ده لپاره ګټور وي او خپلو هيلو او اميدونو ته به ورسېږي، خو په حقيقت کې دا کار د ده لپاره نه ګټور تماميږي او نه کومه نتيجه پرې مرتبېږي بلکې دا ټول کارونه به يې له زوال سره مخ شي او د دنيا او آخرت شرمېندګي به يې په برخه شي.

هغه څوک چې الله تعالی يې زړه له خپلې لارښوونې او هدايت ځخه واړوي هغه به هېڅکله د هدايت او توفيق لار پيدا نه کړي، په هر حا ل دوه مخی انسان هېڅکله په ټولنه کې د اعتبار وړ نه وي او هېڅوک په هر ځای کې د ده له شر ځخه په امن کې نه وي.

**د کلمو معنا:**

١. نفرت: کرکه.

٢. رفق: نرمي.

**د تدريس تګلاره:**

نمونوي قرائت، پوښتنې او ځواب، انفرادي او ګروپي، توضيحي او تشريحي.

**مرستندويه درسي توکي:** درسي کتاب، تخته، تباشير او د امکان په صورت کې کاک کاغذ.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>– ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم لـه سـلام اچولـو، او د الله تعالی له حمد، ثناء او پر پیغمبر صلی الله علیه وسلم له درود ویلو څخه وروسته د زده‌کوونکو د احوال پوښتنه کوي، د ټولګي له تنظیمولو او د حاضرۍ له اخیستلو وروسته مخکینی لوست د څو پوښتنو په کولو سره ارزوي، لکه:<br>✓ د مخکیني لوست حدیث شریف څوک له مخې لوستلای شي؟<br>✓ د مخکیني لوست د حدیث شریف له ګټو څخه دوې ګټې ولیکئ؟<br>– ښاغلی ښوونکی د نوي لوست پـه اړه د انګېـزې او نـوي لوسـت تـه د عنوان پیدا کولو په غرض له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: هغه څوک چې د دوو مسلمانانو تر منځ بـدې خبـرې وړي څـه ورتـه ویـل کیږي؟ | زده‌کوونکي دې د پوښتنو ځواب ووایي.<br><br>یــو زده‌کـــوونکی دې د پوښتنې ځواب ووایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښـوونکی د صـحیح ځـواب لـه اورېـدلو څخـه وروسـته د نـوي لوست عنوان چې (دوه مخي) ده د یو تن زده‌کوونکي څخـه غـواړي چې په ښکلي خط سره یې د تختې پر مخ ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې یې له خپلو ځانونو سره یاد داشت کـړي او د (نفرت او رفق) کلمې له معنا سره پر تخته ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی له یـو تـن زده‌کـوونکي څخـه غـواړي چې د لوسـت څنلېز عنوانونه په ښکلي خط سره پر تخته ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی په یو تن زده‌کـوونکي د لوسـت عنوانونـه د تختـې لـه مخې لولي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په لـوړ او مناسـب آواز سـره لـولي، د لوسـتلو پـر وخـت د لوسـت ځینـې تکراري کلمې له ځان سره لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف متن په یـوه تـن زده‌کـوونکي او نـور پاتې لوست په څو نورو زده‌کوونکو لولي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي د لوستلو پر وخت هڅوي.<br>– ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو څخه غواړي تر څـو د حـدیث شـریف راوي د کتاب په مرسته معرفي کړي. | زده‌کـــوونکي دې لوســت په پټه خوله مطالعه کړي.<br><br>زده‌کوونکي دې د لوسـت عنوانونه ولیکي.<br><br>زده‌کـــوونکي دې خپلـــو کتابونو ته ځیر شي.<br><br>زده‌کـــوونکي دې لوســت ولولي.<br><br>یـــو زده کـــوونکی دې د حـــدیث شـــریف راوي معرفي کړي. |

| | | |
|---|---|---|
| | – ښاغلی ښوونکی د څنډېزو عنوانونو په مرسته لوست تشریح کوي او د توضیح په وخت کې د لوست په مهمو ټکو ټینګار کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو د لوست کلمې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي پر تختې د کلمو د لیکلو پر وخت کنترول او څارنه يې کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو ګروپونو وېشي او دنده ورکوي تر څو هر یو ګروپ د دوه مخي سرې په اړه یو له بل سره بحث وکړي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ګروپي کار پر مها ل کې ټولګی کنترول او نظم يې ساتي او د اړتیا پر وخت له څینو ګروپونو سره مرسته کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ګروپي کار له پای ته رسېدلو څخه وروسته زده‌کوونکي هڅوي او د بحث پایلې ارزوي. | زده‌کوونکي دې د لوست تشریح ته غوږ ونیسي.<br><br>زده‌کوونکي دې د لوست کلمې د تختې له مخې ولیکي.<br>زده‌کوونکي دې پر مناسبو ګروپونو ووېشل شي او یو له بل سره دې بحث وکړي.<br>زده‌کوونکي باید له دغو ناوړه صفتونو څخه خپل ځانونه وساتي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په لاندې ذکر شویو پوښتنو ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>پورتنی لوست په لاندې ټکو کې لنډولای شو:<br>۱. د اسلام له نظره د هغو ناوړه عملونو له جملې څخه چې منکرات حسابېږي یو هم دوه مخي ده.<br>۲. دوه مخي د نفاق یوه برخه ده.<br>۳. دوه مخي د مسلمانانو تر منځ د اختلاف، نفاق، او دښمنۍ لامل ګرځي.<br>٤. انسان باید دوه مخي وپېژني، چې دوه مخی انسان د قیامت په ورځ له ټولو څخه په بدو خلکو کې حشر کېږي.<br>۵. د دوه مخي انسان لپاره د آخرت په عذاب سربېره په دنیا کې هم بې عزتي په برخه وي. | زده‌کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ ونیسي او هغه د په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
| | **کورنی دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته د هغې کورنۍ دندې په اړه چې په درسي کتاب کې ورکړل شوې ده معلومات ورکوي، او د خپلو لازمي معلوماتو په سرته رسولو زده‌کوونکي مکلفوي. | |

## شپږم لوست:

**عنوان: تقوا او پرهيزګاري**

**مخ:**

**وخت: يو درسي ساعت (٤٥) دقيقې.**

**موخې: زده‌کوونکي بايد:**

١. د حديث شريف متن په صحيح ډول ولوستلای شي.
٢. د لوست مفهوم او ګټې په سمه توګه زده کړي.
٣. د حديث شريف معنا زده کړي.
٤. په خپل ورځني ژوند کې خپله تقوی ښکاره کړي.
٥. له تقوی او متقيانو سره مينه پيدا کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

پدې حديث شريف کې رسول اکرم صلی الله عليه وسلم فرمايي: «**اتَّقِ اللهَ حَيثُمَا كُنتَ**» لدې حديث شريف څخه مراد دا دی چې په هر ځای کې اوسې له الله تعالی څخه ووېرېږه، که پټ وې او که ښکاره، که د قوت په حال کې وي او که د ضعف. رسول الله صلی الله عليه وسلم په يو بل حديث شريف کې ابو ذر رضي الله تعالی عنه ته فرمايي: «أُوصيك بتقوى الله في سرِّ أمرك وعلانيته» ژباړه: اې ابو ذره! زه تاته په پټو او ښکاره کارونو کې له الله تعالی څخه په وېره بانډې وصيت کوم. او نبي کريم صلی الله عليه وسلم به په خپله دعا کې داسې فرمايل: «**أسألك خشيتَك في الغَيبِ والشَّهادة**» ژباړه: ای الله له تا څخه په پټه او ښکاره کې د وېرې غوښتنه کوم.

ځيني داسې خلك هم شته چې په ظاهر کې ورځخه تقوی او پرهېزګاري ليدل کېږي خو په حقيقت کې يې له الله تعالی سره معامله بل شان وي، کله چې يوازې شي د الله تعالی حدود تر پښو لاندې کوي، پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايي: «**لأَعْلَمَنَّ أَقْوَامًا مِنْ أُمَّتِى يَأْتُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِحَسَنَاتٍ أَمْثَالِ جِبَالِ تِهَامَةَ بِيضًا فَيَجْعَلُهَا اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ هَبَاءً مَنْثُورًا** ». **قَالَ ثَوْبَانُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ صِفْهُمْ لَنَا جَلِّهِمْ لَنَا أَنْ لاَ نَكُونَ مِنْهُمْ وَنَحْنُ لاَ نَعْلَمُ. قَالَ**: «**أَمَا إِنَّهُمْ إِخْوَانُكُمْ وَمِنْ جِلْدَتِكُمْ وَيَأْخُذُونَ مِنَ اللَّيْلِ كَمَا تَأْخُذُونَ وَلَكِنَّهُمْ أَقْوَامٌ إِذَا خَلَوْا بِمَحَارِمِ اللَّهِ انْتَهَكُوهَا**» ژباړه: يقيناً زه له خپل امت څخه داسې کسان پېژنم چې د قيامت په ورځ به له دومره نېکيو سره راشي لکه د تهامې غر، خو الله تعالی به د ده هغه نېکۍ بې ارزښته او بې قېمته کړي، ثوبان (رضي الله عنه) وويل: اې د الله تعالی رسوله! دغه خلك موږ ته را وپېژنه تر څو موږ په ناپوهۍ کې د هغوی په ډله کې شامل نه شو، رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: هغوی ستاسو وروڼه او ستاسو له جنس څخه دي، په شپه کې همدومره عمل کوي چې تاسې يې کوئ، خو هغوی داسې خلك دي چې کله د الله تعالی له محارمو سره يوازې شي هغه پرې کوي، يعنې کله چې له خلکو څخه ګوښه شي نو د الله تعالی له حدود او محارمو څخه تيری کوي.

**د کلمو معنا:**

١. **غزوات:** د غزوه جمع، جنګ ته ويل کېږي، او په اصطلاح کې هغو سپېڅلو جنګونو ته ويل کېږي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم په خپله په کې ګډون کړی وي.
٢. **مايوس:** ناهيلی.
٣. **اعاده:** (بېرته راګرځول)

**د تدريس تګلاره:**
نمونوي قرائت، پوښتنې او ځواب، انفرادي او ګروپي، توضيحي او تشريحي.
**مرستندويه درسي توکي:** درسي کتاب، تخته، تباشير او د امکان په صورت کې کاک کاغذ.
**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده‌کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **مقدمه:**<br>– ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، او د الله تعالی له حمد، ثناء او پر پيغمبر صلی الله عليه وسلم باندې له درود ويلو څخه وروسته د زده‌کوونکو د احوا ل پوښتنه کوي او د ټولګي له تنظيم او د حاضرۍ له اخيستلو وروسته مخکيني لوست د څو پوښتنو په کولو سره ارزوي، لکه:<br>✓ د ذو الوجهين حديث څا حفظ کړی دی؟<br>✓ له مخکيني حديث شريف څخه موږ ته کومې ګټې په لاس راغلې دي؟<br>– ښاغلی ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې او نوي لوست ته د عنوان پيدا کولو په غرض له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: الله تعالی ته له ايمان څخه وروسته کوم يوعمل ډېر ښکلی او مقبول دی؟ | زده‌کوونکي دې پوښتنو ته معقول ځواب ووايي.<br><br>يو زده‌کوونکي د پوښتنې ته معقول ځواب ووايي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښوونکی د صحيح ځواب له اورېدلو څخه وروسته د نوي لوست عنوان چې (تقوا او پرهيزګاري) ده په ښکلي خط سره د تختې پر مخ ليکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې يې له خپلو ځانونو سره ياد داشت کړي خپله پدې وخت کې د (مجتهدين، غزوات، مايوس او اعاده) کلمې له معنا سره پر تخته ليکي او وروسته هغه کلمې په زده‌کوونکو لولي.<br>– ښاغلی ښوونکی د لوست بغلي عنوانونه په يو تن زده‌کوونکي لولي او په بل زده‌کوونکي يې په ښکلي خط سره پر تخته ليکي.<br>– ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو سره د عنوانونو په ليکلو او لوستلو کې مرسته کوي او هڅوی هڅوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د حديث شريف متن دوه ځلې لولي او وروسته يې پر څو تنو زده‌کوونکو تکراروي، تر څو چې له صحيح لوستلو څخه يې ډاډه شي.<br>– ښاغلی ښوونکی د لوست ستونزمنې کلمې زده‌کوونکو ته شرح او بيا | زده‌کوونکي دې لوست په پټه خوله مطالعه کړي.<br><br>يو زده کوونکي دې د لوست عنوانونه ولولي او بل زده کوونکی دې هغه وليکي.<br><br>زده‌کوونکي دې لوست ولولي.<br><br>زده‌کوونکي دې د لوست |

| | | |
|---|---|---|
| | حدیث شریف ورته ترجمه کوي. .<br>– ښاغلی ښوونکی له ترجمې څخه وروسته زده‌کوونکي په دوو او یا دریو ډلو وېشي، دوی ته دنده ورکوي تر څو د حدیث شریف د راوي، حکمت، مفاهیمو او په ورځني ژوند کې د تطبیق په اړه یو له بل سره بحث وکړي او هغه ګټې چې له حدیث شریف څخه تر لاسه کولای شي په لنډ ډول په یوه پاڼه کاغذ کې ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د خبرو اترو لړۍ تر خپل کنترول لاندې نیسي، زده‌کوونکي په خبرو کې د ګډون لپاره هڅوي او د اړتیا په وخت کې په خپله هم په یوه ډله کې ګډون کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د بحث له پای ته رسېدلو وروسته د هرې ډلې مشر د تختې مخې ته را غواړي، او دنده ورکوي تر څو د خپل بحث پایلې نورو ټولګیوالو ته بیان کړي، او په خپله هغوی هڅوي او غلطۍ یې سموي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته وظیفه ورکوي چې د تختې د مخ ټولې کلمې د ګروپي کار له پایلو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي. | تشریح ته غوږ ونیسي.<br><br>زده‌کوونکي دې په خپلو منځو کې بحث وکړي او د هغه ګټې دې په لنډ ډول ولیکي.<br><br>د زده‌کوونکو نمایندګان دې د خپل کار پایلې اعلان کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو باندې ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>پورتنی لوست په لاندې ټکو کې لنډولای شو:<br>۱. له ګناه څخه ځان ساتل د تقوی او پرهېزګارۍ لامل کېږي.<br>۲. بنده باید په هر وخت کې الله تعالی په یاد ولري، او هغه ذات په هر ځای کې حاضر او شاهد وګڼي.<br>۳. کله چې له بنده څخه کومه ګناه تر سره شي باید زر تر زره نېک عمل تر سره کړي، ځکه نېکي بدي له منځه وړي. | زده‌کوونکي دې د لوست لنډیز په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته د هغې کورنۍ دندې په اړه چې په درسي کتاب کې ورکړل شوې ده معلومات ورکوي، د هغې په سرته رسولو یې مکلفوي. | |

## اووم لوست:

**عنوان: تواضع (عاجزي کول)**

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقي.**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

١. د حدیث شریف متن په صحیح ډول ولوستلای شي.
٢. د لوست مفهوم په سمه توګه زده کړي.
٣. د حدیث شریف د کلمو معنا زده کړي.
٤. په خپل ورځني ژوند کې خپله تواضع (عاجزي) ښکاره کړي.
٥. نور خلک تواضع او عاجزۍ ته وهڅوي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د تواضع ضد کبر او غرور دی، کبر او غرور د دې لامل کېږي چې انسان خپل ځان پر نورو خلکو لوړ وګڼي او هر کله چې انسان خپل ځان له نورو خلکو څخه غوره وګاڼه نو نه د نورو خلکو خبرې اوري او نـه ورتـه ارزښـت ورکـوي، اګـر که هغه په حقه هم وي. له دې امله رسول الله صلی الله علیه وسلم د کبرجنو خلکو پـه اړه فرمـایلي دي: «**لا یدخل الجنة من کان فی قلبه مثقال ذرة من کبر**» ژباړه: د چا په زړه کې چې د یوه مثقال په اندازه کبر موجود وي هغه به جنت ته داخل نـه شي. په اوسنیو ټولنو کې ځومره زیات خلک د خپل ځان د لوړ لیدلو (کبر) له امله د هېڅا د حق منلو تـه تیـار نـه دي، لـه خلکو سره د چلند پر وخت خپل ځان لوړ ګڼي، تواضع او عاجزۍ د دوی له منځ څخه خپله بستره ټړلې ده.

د دې لپاره چې په خپلو ټولنو کې خیر او اصلاح بېرته را ژوندۍ کړو نو باید د ټولنې مشران مو لکه: د مـسجدونو امامـان، د ښوونځیو ښوونکي، د پوهنتونونو او دارالمعلمینونو استادان خلک تواضع او عاجزۍ ته را وبـولي، ډول ډول لارې وپلټـي تر څو دغه نېک او غوره اخلاق په ټولنه کې خپاره شي، همدارنګه باید ډول ډول لارې وپلټي تـر څـو د ځمکـې لـه مـخ څخه د کبر او غرور ټغر ټول شي، او انسانان د ځمکې پر مخ د مینې او محبت په فضا کې خپل ژوند ته دوام ورکړي.

په ځینو روایتونو کې راځي چې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم ملګرو به د دې لپـاره چـې تکبـر یـې پـه خپلـو ځـانونو کـې وژلی وي پداسې عملونو به یې لاس پورې کاوه چې د هغو په وسیله کبـر او غـرور د دوی لـه مـنځ څخـه ورک شـي او تواضع او عاجزي په کې ژوندۍ شي، لکه: یوه ورځ حضرت عمر رضي الله تعـالی عنـه د اوبـو یـو مـشک پـه خپلـو اوږو اېښی و، هغه یې وړلو، یوه سړي ورځخه پوښتنه وکړه، ولې د اوبو دغه مشک په اوږو وړې؟ ده وویل: زما په دمـاغ کـې دا خبره را وګرځېده چې زه امیر المؤمنین یم او ټول مسلمانان زما اطاعت کوي، دې خبرې زما په زړه کې یو ډول غـرور پیدا کړ، لدې امله مې وغوښتل چې د شیطاني وسوسې دغه اور ووژنم.

**د کلمو معنا:**

١. **فاروق:** فرق کوونکی.
٢. **جوار:** ګاونډ.
٣. **صدیق:** رښتیا ویونکی.

**د تدریس تګلاره:**

نمونوي قرائت، پوښتنې او ځواب، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، تخته، تباشیر او کاک کاغذ.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>– ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، او د الله تعالی له حمد، ثناء او پر پیغمبر صلی الله علیه وسلم بانـدې لـه درود ویلو وروسته د زده‌کوونکو د احوا ل پوښـتنه کـوي او د ټـولګي لـه تنظیم او د حاضرۍ له اخیستلو وروسته مخکینی لوست د څو پوښتنو په کولو سره ارزوي، لکه:<br>✓ څوک حضرت معاذ رضي الله تعالی عنه معرفي کولای شي؟<br>✓ د تقوی او پرهېزګارۍ د حدیث شریف متن څوک لـه یـاده ویـلای شي؟<br>✓ له تقوی او پرهېزګارۍ څخه مقصد څه دی؟<br>– ښاغلی ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې او نوي لوسـت تـه د عنوان پیدا کولو په غرض له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کـوي، لکـه: څوک ویلای شي چې د انسان د مقـام د لـوړوالي لامـل څـه شـی کېدای شي؟ | زده‌کـوونکي دې پوښـتنو تـه معقول ځواب ووايي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښوونکی د صحیح ځواب له اورېـدلو څخـه وروسـته د نـوي لوست عنوان چې تواضع (عاجزي کول) دي د تختې پر مخ لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو لوسـت پـه پټـه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې یې له خپلو ځانونو سـره یـاد داشـت کړي او په خپله پدې وخت کې د (فاروق، جوار او صـدیق) کلمـې له معنا او د لوست له بغلي عنوانونو سره پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د حدیث شـریف مـتن دوه ځلـې د نمـونې پـه ډول لولي او وروسته له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د حـدیث شـریف متن تر هغه وخته پورې ولولي چې ښوونکی د زده‌کوونکو د لوست له زده کولو څخه ښه ډاډه شي.<br>– ښاغلی ښوونکی پر زده‌کوونکو د حدیث شریف د متن له ښه تکرار څخه وروسته هغه ترجمه کوي. دغه ترجمه هم څو ځلې تکـراروي تر څو چې د لوست له زده کولو څخه ښه ډاډه شي.<br>– ښاغلی ښوونکی کله چې د حـدیث شـریف د راوي او حکمـت پـه اړه زده‌کوونکـو تـه څـه ارزښـتناک ټکـي بیـان کـړي، وروسـته | څـو تنــه زده‌کــوونکي دې لوست ولولي.<br><br>یو زده کوونکی دې د حدیث شریف راوي معرفي کړي.<br><br>زده‌کــوونکي دې پــه ډلــو وویشل شي او په خپلو منځو |

| | | |
|---|---|---|
| | زده‌کوونکي پر دوو ډلو وېشي او دنده ورکوي تر څو د حديث شريف د ګټو او په ورځني ژوند کې د هغو د عملي کولو په اړه يو له بل سره بحث وکړي، د خپل کار پايلې په يوه پاڼه کاغذ کې وليکي، په پای کې د هرې ډلې له نماينده څخه غواړي تر څو د تختې مخې ته راشي او هغه خپلو ټولګيوالو ته ووايي، ښاغلی ښوونکی پدې وخت کې د هغوی غلطۍ اصلاح او دوی هڅوي.<br>- ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د حديث شريف ګټې چې پخپله دوی ليکلې دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- ښاغلی ښوونکی د څنډېزو عنوانونو په مرسته د لوست، د حديث د ګټو او حکمت په اړه په څو شمېرليو ټکو کې بحث او څېړنه کوي. | کې دې بحث وکړي.<br><br>زده‌کوونکي دې د حديث شريف ګټې په خپلو کتابچو کې وليکي. |
| ۱۰ دقيقې | **پوښتنې:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل ځان د ډاډه کولو لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو باندې ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ارزونې پوښتنو ته قناعت ورکوونکي ځوابونه ورکړي. |
| ۵ دقيقه | **د لوست لنډيز:**<br>پورتنی لوست په لاندې ټکو کې لنډولای شو:<br>۱. تواضع د مسلمان له نېکو صفتونو څخه شمېرل کېږي.<br>۲. تواضع د الله تعالی په وړاندې د انسان مقام لوړوي او د انسان د عزت لامل کېږي.<br>۳. کبر او غرور انسان خوار او ذليل کوي، لکه څرنګه چې الله تعالي د کبر له امله شيطان د ابدي لعنت مورد وګرځاوه.<br>۴. تواضع د قدرمنو او غني خلکو سره ښه خوند کوي او د دوی د درجو د ډېر لوړوالي لامل کېږي پدې اړه يو شاعر ويلي دي:<br>تواضع زګردن فرازان نکوست     ګدا اګر تواضع کند خوی اوست<br>تواضع له غني او قدرتمنو خلکو سره ښه ښکاري.<br>سوالګر که تواضع کوي د هغه خو خوی او عادت دی. | زده‌کوونکي دې د لوست لنډيز په خپلو کتابچو کې وليکي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه معلومات ورکوي، او د هغې په سرته رسولو يې مکلفوي. | زده‌کوونکي دې د کورنۍ دندې ارزښتناک ټکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم په خپلو کتابچو کې ياد داشت کړي. |

## اتم لوست:

**عنوان: د سلام فضیلت**

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقې.**

**موخې:**

**زده‌کوونکي باید:**

١. د حدیث شریف نص او د لوست متن په صحیح ډول ولوستلای شي.
٢. د حدیث شریف د کلمو معنا زده کړي.
٣. د لوست مفهوم په سمه توګه زده کړي.
٤. په عمل کې د سلام اداء کول مراعات کړي.
٥. د حدیث شریف مطلب خپلو کورنیو او خپلوانو ته ورسوي او هغوی د سلام عملي کولو ته را دعوت کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

سلام اچول له هغو طریقو څخه یوه طریقه ده چې په وسیله یې په ټولنه کې مینه او محبت را منځ ته کېږي، باید له هغو ټولو وسیلو څخه کار واخیستل شي چې له امله یې په ټولنه کې مینه او محبت را منځ ته او خپرېږي.

د ټولنیزو اړیکو د غښتلي کولو په لار کې لومړی ګام پېژندګلوي ده چې هغه په سلام اچولو پیلېږي، په پایله کې یو له بل سره د مینې، مرستې او یو د بل تر منځ په دوستۍ کولو تامېږي.

تاسو وګورئ نبي کریم صلی الله علیه وسلم په حدیث شریف کې د سلام اچول په الله تعالی باندې له ایمان سره تړلي دي، نو د ریښتیني ایمان له نښو څخه دا دي چې مسلمانان باید په خپلو منځونو کې نېکې اړیکې ولري، یو له بل سره مینه ولري، یو پر بل زړه سوی ولري او یو له بل سره مرسته وکړي، همدارنګه یو بل پدې وپوهوي چې زما له لوري در ته هېڅ ډول زیان نه رسېږي او په امن کې یې.

نو ښاغلی ښوونکی باید زده‌کوونکی سلام اچولو ته وهڅوي او د سلام اصلي فلسفه او معنا ورته بیان کړي.

**د کلمومعنا:**

١. **الفت:** مینه.
٢. **آوان:** وخت.
٣. **السلام علیکم:** پر تاسو دې سلامتیا وي.

**د تدریس تګلاره:**

نمونوي قرائت، پوښتنې او ځواب، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، تخته، تباشیر او کاک کاغذ.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>– ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، د الله تعالی له حمد، ثناء او پر پیغمبر صلی الله علیه وسلم له درود ویلو وروسته د زده‌کوونکو د احوا ل پوښتنه کوي او د ټولګي له تنظیم او د حاضرۍ له اخیستلو وروسته مخکینی لوست د څو پوښتنو په کولو سره ارزوي، لکه:<br>✓ حضرت عمر رضی الله تعالی عنه د هجرت په څووم کا ل خلافت ته ورسېد؟<br>✓ څوک د تېر لوست حدیث شریف له یاده لوستلای شي؟<br>– ښاغلی ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې او نوي لوست ته د عنوان پیدا کولو په غرض له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: څوک ویلای شي چې مسلمانان یو له بل سره د مخامخ کېدو پر وخت کوم سنت اداء کوي؟ | زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته معقول ځواب ووایي.<br><br>یو تن زده کوونکی دې کوښښ وکړي او د خپل ښوونکي پوښتنو ته دې معقول ځواب ووایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښوونکی د صحیح ځواب له اورېدلو وروسته د نوي لوست عنوان د تختې پر مخ لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې یې له خپلو ځانونو سره یاد داشت کړي او خپله پدې وخت کې د (الفت، آوان او السلام علیکم) کلمې له معنا سره پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی دوه تنه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راغواړي پر یوه د لوست بغلي عنوانونه لولي او پر بل یې په ښکلي خط د تختې پر مخ لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د زده‌کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته را اړوي، په خپله د لوست متن د نمونې په ډول دوه ځلې لولي او وروسته له څو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هغه ولولي او په خپله دې د دوی د لوستلو طریقه تصحیح کړي.<br>– ښاغلی ښوونکی د بغلي عنوانونو په مرسته لوست تشریح کوي او د لوست په ځینو کلمو ډېر ټینګار کوي.<br>– بیا ښاغلی ښوونکی دوه تنه زده‌کوونکي د تختې مخې ته را غواړي او دنده ورکوي تر څو د سلام د فضیلت او حکم په اړه یو له بل څخه پوښتنې وکړي البته د دوی پوښتنې او ځوابونه باید په مناسب آواز سره وي تر څو ټول زده‌کوونکي د دوی له پوښتنو او ځوابونو څخه ګټه | زده‌کوونکي دې لوست په پټه خوله مطالعه کړي او خپلې ستونزې دې له ځان سره ولیکي.<br><br>زده‌کوونکي دې د حدیث شریف متن تکرار کړي.<br><br>یو زده‌کوونکی دې څنډېز عنوانونه ولولي او بل زده کوونکی دې هغه ولیکي.<br><br>زده‌کوونکي دې د تختې پر مخ کلمې په خپلو |

| | | |
|---|---|---|
| | واخلي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو د تختې پر مخ لیکل شوې ټولې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د لیکلو په وخت کې زده‌کوونکي کنترولوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د لوست له متن څخه په ګټه اخیستلو سره هغه زده‌کوونکو ته په لنډ او واضح ډول تشریح کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په څو ګروپونو وېشي او هر ګروپ ته دنده ورکوي تر څو د سلام د فضائلو او ټولنیزو اغیزو په اړه په خپلو منځونو کې یو له بل سره بحث وکړي او پایلې یې په یوه پاڼه کاغذ کې په لنډ ډول ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو د ګروپي کار په دوران کې خپلو کتابونو ته مراجعه وکړي او د ګټورې پایلې ترلاسه کولو لپاره له خپلو کتابونو څخه هم ګټه واخلي خو پایلې یې باید په خپل اسلوب سره ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ګروپي کار پر وخت ټولګی کنترول او نظم یې ساتي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ګروپي کار له پای ته رسېدلو څخه وروسته د بحث پایلې ارزوي او زده‌کوونکي هڅوي. | کتابچو کې ولیکي.<br><br>زده کوونکې دې ښوونکي شرحې ته غوږ شي.<br>دوه تنه زده‌کوونکي د یو له بل څخه پوښتنې وکړي.<br><br>د ښې پایلې لاس ته راوړلو په غرض دې زده‌کوونکي په خپلو منځونو کې ګروپي کار وکړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو باندې ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ارزونې پوښتنو ته قناعت ورکوونکي ځوابونه ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>پورتنی لوست په لاندې ټکو کې لنډولای شو:<br>۱. د اسلام مقدس او سپېڅلی دین د امن او سلامتی دین دی او ټل خپل پیروان امن او سلامتۍ ته هڅوي.<br>۲. د سلام اچول د پیغمبر صلی الله علیه وسلم سنت دی، چې پدې لفظ کې امن او سلامتي نغښتې ده.<br>۳. لومړنی هغه شی چې د مسلمانانو تر منځ د مینې او محبت لامل ګرځي همدغه د (سلام) کلمه ده.<br>٤. د سلام کلمه د اسلامي ټولنې تر منځ نېکې او د ورورګلوی اړیکې تامینوي.<br>۵. سلام اچول جنت ته د داخلېدو له لاملونو څخه دي او باید د دې سنتو په اداء کولو کې کوښښ وکړو. | زده‌کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ شي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه معلومات ورکوي، او د هغې د سرته رسولو دنده ورسپاري. | |

## نهم لوست:

**عنوان: د وخت او روغتیا ارزښت**

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقې.**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

١. د حدیث شریف متن په صحیح ډول ولوستلای شي.
٢. د لوست مفهوم په سمه توګه زده کړي.
٣. د حدیث شریف معنا زده کړي.
٤. د وخت او روغتیا په ارزښت باندې وپوهېږي.
٥. د وخت څخه ګټې اخیستلو او د روغتیا پالنې ته پاملرنه وکړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په حدیث شریف کې د ژوند دوو ډېرو لویو او ارزښتناکو نعمتونو ته اشاره شوې ده، یو د روغتیا نعمت دی او بل وخت دا واقعیت دی چې ډېر زیات خلک د دې دوو لویو نعمتونو په اړه ډېره کمه پاملرنه کوي، د خپل ځان او راتلونکي لپاره لدې نعمتونو څخه ډېره لږه ګټه اخلي، یو له هغو لویو بلاګانو څخه چې اسلامي نړۍ او مسلمانان پرې اخته دي همدغه له وخت څخه مناسبه او صحیح ګټه نه اخیستل دي، موږ مسلمانان خپل وخت د خپلې طبعې په خوشحالولو باندې تېرووو، یا خپل عقل، توان او خپلې وړتیاوې په منفي کارونو کې لګوو، له دې امله اسلامي نړۍ وروسته پاتې او د غرب لمن یې نیولې ده، که چېرې زموږ ځوانان د کوچنیتوب په دوران کې له وخت څخه ښه ګټه واخلي او خپل وخت په ښوونه او روزنه ولګوي، کېدای شي چې راتلونکی ژوند یې نېک مرغه شي، او کېدای شي چې د خپلې ټولنې لپاره ګټور ثابت شي، که چېرې زموږ په هېواد کې په ډېر ځیر سره څېړنه وشي دا به څرګنده شي چې څومره خلک په ګټورو کارونو مصروف دي او څومره خلک خپل قېمتي وخت په بې ګټې کارونو لګوي، نو له ډېر حیرت څخه به خپلې ګوتې په غاښونو وچیچي. د هغو څېړنو پر اساس چې تر سره شوې دي، په افغانستان کې په عام ډول خلک له یو ساعت څخه هم کم وخت کار کوي او له درویشتو ساعتونو څخه زیات وخت په ضررناکو او بې ګټو کارونو لګوي.

ښاغلی ښوونکی باید د خپل ځان او خپلو زده‌کوونکو لپاره ورځنی دقیق پلان جوړ کړي، تر څو پر ده او زده‌کوونکو وخت بې ګټې تېر نه شي، همدا د پلان نشتوالی، د وخت لپاره د یو منظم او دقیق جدول نه درلودل، زموږ په ټولنه کې د زیاتو ستونزو لامل شوی دی، له دې امله زموږ زده‌کوونکي له دولسم ټولګي څخه پداسې شان فارغېږي چې له کافي سواد څخه برخمن نه وي، آن تر دې چې ویلای شو زموږ د پوهنتون ځینې زده‌کوونکي له پوهنتون څخه پداسې شان فارغېږي چې په ملي یا بین المللي ژبو باندې د یو مکتوب د لیکلو توان نه لري، دا ټولې بدبختۍ د یو منظم پلان او له وخت څخه د صحیح ګټې نه اخیستلو له امله رامنځ ته شوې دي، په یقیني توګه ویلای شو: وخت زموږ سره یو امانت دی چې د قیامت په ورځ د الله تعالی په وړاندې یې له موږ څخه پوښتنه کېږي، لکه څرنګه چې په قرآن کریم کې راغلي دي: (**مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ**) **[ق : ١٨]** ژباړه: هېڅ داسې لفظ د هغه له خولې څخه نه راوزي چې د هغه د محفوظ ساتلو لپاره یو حاضر باش څارونکی ورسره موجود نه وي.

ښاغلی ښوونکی! هیله ده چې خپلو زده‌کوونکو ته له وخت څخه د نېکې ګټې اخیستلو لارښوونه وکړئ، دوی ته و ښایئ چې خپل قیمتي وخت بې ځایه تېر نه کړي، او خپلې روغتیا ته ځانګړې پاملرنه وکړي، ځکه چې د انسان روغتیا ته اسلام په ځانګړي ارزښت قایل دی.

اسلام د روغتیا ساتنې لپاره مختلفې لارې په نظر کې نیولې دي:

۱. د خوړلو او څښلو په توکو کې د اسلام وقایوي نظام: مثلاً: باید له حلالو او پاکو توکو څخه ګټه واخیستل شي، د حرامو توکو څخه ډډه وشي او په خوړلو او څښلو کې باید نظافت مراعات شي، پدې ډول چې د خوراك او څښاك توکي باید له پاکو شیانو څخه وي او له ناپاکو شیانو څخه نه وي.
۲. د چاپېریال ساتنې له لارې وقایه: لکه د کور، سرك، کوڅې او د کېناستلو د ځایونو پاك ساتل، همدارنګه پر موږ باندې لازم دي چې خپل پاتې خوراکي توکي د اوسېدلو له ځای څخه لرې وغورځوو تر څو د نورو خلکو د ضرر او زیان لامل ونه ګرځي.
۳. زده‌کوونکو ته باید وښایو چې خپل پاتې خوراکي توکي د سرك پر سر او کوڅه کې وا نه چوي، او د خپلو جامو په پاك ساتلو کې ډېره هڅه وکړي.
٤. زده‌کوونکو ته باید وښودل شي چې په لار کې د کثافاتو له اچولو څخه خپل ملګري هم منع کړي.

**د کلمو معنا:**

۱. **طایف:** د سعودي عربستان له لویو ښارونو څخه یو ښار دی.
۲. **وقایه:** ساتنه.

**د تدریس تګلاره:**

نمونوي قرائت، پوښتنې او ځواب، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، تخته، تباشیر او د امکان په صورت کې کاك کاغذ.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>– ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، او د الله تعالی له حمد، ثناء او پر پیغمبر صلی الله علیه وسلم له درود ویلو څخه وروسته د زده‌کوونکو د احوا ل پوښتنه کوي او د ټولګي له تنظیم، د حاضرۍ له اخیستلو وروسته مخکینی لوست د څو پوښتنو په کولو سره ارزوي، لکه:<br>✓ د حدیث شریف دا برخه (**لاتَدخُلوُا الجَنةَ حَتی توُمِنوُا**) څوك معنا کولای شي؟<br>– ښاغلی ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې او نوي لوست ته د عنوان پیدا کولو په غرض له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: څوك ویلای شي چې له ناروغۍ څخه د مخنیوي تر ټولو غوره لار کومه ده؟ | زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته معقول ځواب ووایي. |

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۲۵<br>دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښوونکی د صحیح ځواب له اورېدلو وروسته د نوي لوست عنوان د تختې پر مخ لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې یې له خپلو ځانونو سره یاد داشت کړي، په خپله پدې وخت کې د (طایف او وقایې) کلمې له معنا سره پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی دوه تنه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راغواړي پر یوه د لوست بغلي عنوانونه لولي او پر بل یې د تختې پر مخ لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د زده‌کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته را اړوي، لوست د کتاب له مخې لولي، د لوستلو په وخت کې د لوست ستونزمنې کلمې تکراروي او پر تخته یې لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف متن دوه ځلې لولي او وروسته له څو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هغه ولولي تر څو له صحیح لوستلو څخه یې ډاډمن شي.<br>– ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف متن زده‌کوونکو ته معنا کوي، دغه کار دوه ځلې تکراروي تر څو د هغه معنا د زده‌کوونکو په ذهن کې ځای ونیسي.<br>– وروسته ښاغلی ښوونکی د بغلي عنوانونو په مرسته لوست تشریح کوي. او د تشریح پر وخت پر ځینو ټکو زیات ټینګار کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي تر څو د تختې پر مخ کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او خپله ټولګی کنترولوي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو ګروپونو وېشي، او دنده ورکوي تر څو د وخت او روغتیا د ارزښت په اړه یو له بل سره بحث وکړي.<br>– ښاغلی ښوونکی د خبرو اترو پر وخت ټولګی کنترولوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ګروپي کار له پای ته رسېدلو څخه وروسته د بحث پایلې ارزوي او زده‌کوونکي هڅوي. | زده‌کوونکي دې لوست په پټه خوله سره مطالعه کړي.<br><br>یو زده کوونکی دې د لوست عنوانونه ولولي او بل زده کوونکی دې ولیکي.<br>زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته متوجه شي.<br><br>زده‌کوونکي دې د حدیث شریف متن تکرار کړي.<br><br>زده‌کوونکي دې د لوست تشریح ته غوږ شي.<br><br>زده کوونکي دې په مناسبو ګروپونو ووېشل شي او د موضوع په اړه دې یو له بل سره بحث وکړي. |
| ۱۰<br>دقیقې | **پوښتنې:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو باندې ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ارزونې پوښتنو ته قناعت ورکوونکي ځوابونه ورکړي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>پورتنی لوست په لاندې ټکو کې لنډولای شو:<br>۱. روغتیا او وخت دوه هغه نعمتونه دي چې ډېر خلك یې په ارزښت نه پوهېږي.<br>۲. انسان کولای شي چې له دغو دوو نعمتونو څخه په ګټې اخیستلو سره نیک کارونه ترسره او د الله تعالی خوښي ترلاسه کړي.<br>۳. مسلمان باید د الله تعالی له دغو دوو نعمتونو څخه ګټه واخلي، عبادات او خپلې ورځنۍ دندې تر سره کړي.<br>٤. مسلمان باید له غفلت او تنبلۍ څخه ځان وساتي. | زده کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ شي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه معلومات ورکوي، او د هغې په سرته رسولو یې مکلفوي. | |

## لسم لوست:

**عنوان: د رشوت حراموالی**

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقې.**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

١. د حدیث شریف متن په صحیح ډول ولوستلای شي.
٢. د حدیث شریف په ترجمه پوه شي.
٣. د لوست مفهوم زده کړي.
٤. په کور او ټولګي کې د خپل نفس سپېڅلتیا وښیي.
٥. له رشوت څخه د خپلې ټولنې په پاکولو کې کوښښ وکړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

ټولنیز اخلاق په دوه ډوله دي: یو نېک او غوره اخلاق دي، دویم ناوړه او بد اخلاق دي. پر هر مسلمان لازمه ده چې خپل ځان په غوره او نېکو اخلاقو ښایسته کړي او په ټولنه کې یې د خپرولو کوښښ وکړي، د دې په مقابل کې په هر مسلمان لازم دي چې بد او ناوړه اخلاق له خپل ځان څخه لرې کړي او د هغو په له منځه وړلو کې زیات کوښښ وکړي. د رشوت اخیستل د ناوړه اخلاقو له جملې څخه دي، رشوت زموږ په ژوند کې ډېرې ناوړه اغیزې رامنځ ته کړې دي او نن په ختیځو نظامونو کې په اداري فساد تر ټولو زیاته ګوته مونږ ته نیول کېږي.
د رشوت اخیستل د دې لامل کېږي چې حق باطل وښیي او باطل حق.

**د کلمو معنا:**

١. **قاري:** لوستونکی.
٢. **جهنم:** دوزخ.
٣. **انحراف:** بې لارېتوب.

**د تدریس تګلاره:**

نمونوي قرائت، پوښتنې او ځواب، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، تخته، تباشیر او د امکان په صورت کې کاک کاغذ.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ٥ دقیقې | **مقدمه:**<br>– ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، د الله تعالی له حمد، ثناء او پر پیغمبر صلی الله علیه وسلم باندې له درود ویلو وروسته د زده‌کوونکو د احوا ل پوښتنه کوي، ټولګی تنظیموي، حاضري اخلي او بیا مخکینی لوست د څو پوښتنو په کولو سره ارزوي، لکه: | زده‌کوونکي دې پوښتنو ته ځواب ووايي. |

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| | ✓ د حدیث شریف دا برخه (**نِعمَتانِ مَغبُونٌ فیهما**.....................) څوک معنا کولای شي؟<br>– ښاغلی ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې او نوي لوست ته د عنوان پیدا کولو په غرض له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: په یو هېواد کې څه شی د اداري فساد رامنځته کولو او د قانون له منځه وړلو لامل ګرځي؟ | |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښوونکی د صحیح ځواب له اورېدلو وروسته د نوي لوست عنوان په یوه زده‌کوونکي باندې په ښکلي خط سره د تختې پر مخ لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ټولګي وروستنی ناست زده کوونکی د تختې مخې ته راغواړي تر څو د لوست ځنې‌یز عنوانونه ولولي او ویې لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې یې له خپلو ځانونو سره یاد داشت کړي، خپله پدې وخت کې د (قاري، جهنم او انحراف) کلمې له معنا سره پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف متن په یوه تن زده‌کوونکي او پاتې نور لوست په څو تنو نورو تکړه زده‌کوونکو لولي او د هغوی د لوستلو د طریقې مشري کوي، د لوستلو غلطۍ یې تصحیح کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د زده‌کوونکو پاملرنه خپل ځان ته را اړوي او د ځنې‌یزو عنوانونو په مرسته لوست تشریح کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی په ځینو ټکو باندې ډېر ټینګار کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د زده‌کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته را اړوي لوست په لوړ آواز سره لولي، د لوستلو پر وخت ستونزمنې کلمې تکراروي او پر تخته یې لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو ګروپونو وېشي، دنده ورکوي تر څو د رشوت د زیانونو په اړه یو له بل سره بحث وکړي. خپله د بحث پر وخت ټولګی کنترولوي او د اړتیا په وخت کې له ځینو ګروپونو سره ګډون کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ټولګي نظم ساتي او د ګروپي کار له پای ته رسېدلو وروسته د بحث پایلې ارزوي او زده‌کوونکي هڅوي. | یو تن زده کوونکی دې د لوست عنوان ولولي او ولیکي.<br><br>زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته وګوري او د نوي لوست په مطالعه دې بوخت شي.<br><br>یو زده کوونکی دې د حدیث شریف متن او څو تنه نور زده‌کوونکي دې پاتې لوست کرښه پر کرښه ولولي.<br><br>زده‌کوونکي دې د لوست تشریح ته غوږ شي.<br><br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي د ویلو پر وخت خپلو کتابونو ته ځیر شي.<br>زده‌کوونکي دې له تختې څخه کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br><br>زده‌کوونکي دې د حدیث شریف د ګټو په اړه یو له بل سره بحث وکړي. |

| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو باندې ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي. |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>پورتنی لوست په لاندې ټکو کې لنډولای شو:<br>۱. د اسلام له نظره د رشوت اخیستل او ورکول دواړه حرام دي.<br>۲. رشوت اخستونکی او رشوت ورکوونکی د الله تعالی د لعنت او قهر وړ گرځي.<br>۳. رشوت د بدبختۍ او د اسلامي ټولنې د کمزورۍ لامل گرځي او عدالت له منځه وړي.<br>٤. د یو مسلمان سره نه ښايي چې خپل ځان او یا د خپلې کورنۍ غړي له حرامې غذا او حرامو پیسو څخه تغذیه کړي. | زده‌کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ شي. |
|  | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه معلومات ورکوي، او د هغې په سرته رسولو یې مکلفوي. |  |

## یوولسم لوست:

**عنوان: حلال کسب**

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقې.**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

١. د حدیث شریف او لوست متن په صحیح ډول ولوستلای شي.
٢. د لوست مفهوم زده کړي.
٣. د حدیث شریف پر معنا پوه شي.
٤. د حلال او حرام کسب تر منځ توپیر وپېژني.
٥. حلال کسب ته وهڅول شي او په خپله له دې کار سره مینه ولري.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

کسب، کار او د کورنۍ د اقتصادي پیاوړتیا لپاره کوښښ کول، له هغو ارزښتناکو خویو څخه دي چې اسلام تل خپل پیروان ورته هڅولي دي، اسلام بې کسبه او بې کاره انسان نه خوښوي، او بې کاري بده ګڼي.
پیغمبر صلی الله علیه وسلم تل خپل ملګري کار او کسب ته هڅولي او په کار کولو یې ورته امر کړی دی، په یو حدیث کې راغلي دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته یو سړی راغی او د خپل بد او ناوړه حالت څخه یې ورته شکایت وکړ، نبي کریم صلی الله علیه وسلم له ده څخه پوښتنه وکړه، چې په کور کې څه شی لرې؟ ده د کور د ځینو لوښو یادونه وکړه. نبي کریم صلی الله علیه وسلم هغه لوښي په داوطلبۍ سره اعلان کړل او یو تن صحابي هغه په درې درهمه باندې واخیستل. نبي کریم صلی الله علیه وسلم هغه سړي ته وفرمایل: ولاړ شه په یوه درهم سره دې خپل کور ته ډوډۍ واخله، په یوه درهم سره تبر او په یوه درهم سره رسۍ واخله، او غره ته ولاړ شه له هغه ځای څخه لرګي راوړه او په بازار کې یې پلوره. ده د نبي کریم صلی الله علیه وسلم امر پر ځای کړ له یو څه وخت تېرېدلو څخه وروسته د نبي کریم صلی الله علیه وسلم حضور ته راغی او د خپلې اقتصادي پرمختیا څخه یې خبر کړ.
په یو بل حدیث شریف کې راغلي دي چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم تر ټولو غوره روزي هغه روزي ښودلې ده چې له حلال کسب څخه لاس ته راغلې وي. د دې تر څنګ یې وفرمایل: داود علیه السلام به تل له خپل لاس څخه ډوډۍ خوړله.
په همدې ډول که چېرې زموږ ځوانان خپل وخت ضایع نه کړي او د خپلې ډوډۍ او رزق په پیدا کولو کې کوښښ وکړي کېدای شي چې په ټولنه کې پر ډېرو پرتو ستونزو بریالي شي. که چېرې زموږ ځوانان کوښښ وکړي، د کار په لټه کې شي تر څو کار وکړي، خپله ډوډۍ په خپله تر لاسه کړي او د نورو خلکو مرستې ته اړ نه شي، کېدای شي چې د ټولنې په پرمختګ کې فعاله ونډه واخلي.
که چېرې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم ژوند ته فکر وکړو نو و به وینو چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم مخکې لدې چې ځوانۍ ته ورسېږي په یو تجارتي کاروان کې یې له مکې څخه شام ته سفر وکړ، لدې څخه مخکې یې په مکه مکرمه کې د پیسو په بدل کې د خلکو پسونه څرول، تر څو د خلکو په منځ کې د بې کسبه او بې کاره انسان په صفت ونه پېژندل شي او خپل امت ته پدې لار کې ښه نمونه واوسي.

**د کلمو معنا:**

۱. کوفه: په عراق کې د یو ښار نوم دی.
۲. صنعت: تولید، جوړول.
۳. مصافحه: لاس ورکول، په لاس روغبړ کول.

**د تدریس تګلاره:**

نمونوي قرائت، پوښتنې او ځواب، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، تخته، تباشیر او د امکان په صورت کې کاک کاغذ.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>– ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، او د الله تعالی له حمد، ثناء او پر پیغمبر صلی الله علیه وسلم باندې له درود ویلو وروسته د زده‌کوونکو د احوا ل پوښتنه کوي، ټولګي تنظیموی، حاضري اخلي، بیا مخکینی لوست د څو پوښتنو په کولو سره ارزوي، لکه:<br>✓ راشي کوم سړي ته ویل کېږي؟<br>✓ مرتشي څوک دی؟<br>✓ په ټولنه کې رشوت څه اغیز لري؟<br>– ښاغلی ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې او نوي لوست ته د عنوان پیدا کولو په غرض له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: څوک ویلای شي چې د کوم علم زده‌کړه فرض ده؟ | زده‌کوونکي دې پوښتنو ته ځواب ووایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښوونکی د صحیح ځواب له اورېدلو وروسته د نوي لوست عنوان پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او که له ستونزمنو کلمو سره مخ شول هغه دې په نښه کړي.<br>– ښاغلی ښوونکی د (کوفه، صنعت او مصافحې) کلمې له معنا سره پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی دوه تنه ضعیف زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او لارښوونه ورته کوي تر څو یو د حدیث شریف متن ولولي او بل د حدیث شریف راوي له کتاب څخه په ګډه اخیستلو سره خپلو ټولګیوالو ته معرفي کړي، ښاغلی ښوونکی له هغوی سره | زده‌کوونکي دې لوست په پټه خوله ولولي.<br>یو تن زده کوونکی دې د حدیث شریف متن ولولي او بل زده کوونکی دې د حدیث شریف راوي معرفي کړي.<br><br>زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر شي او د ښوونکي ویلو ته دې غوږ |

| | | |
|---|---|---|
| | مرسته کوي او هڅوي يې، او نور پاتې لوست په څو نورو زده‌کوونکو لولي .<br>– ښاغلی ښوونکی د زده‌کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته را اړوي، لوست په لوړ آواز سره لولي، د لوستلو پر وخت ستونزمنې کلمې له معنا سره پر تخته ليکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته د څنډېزو عنوانونو په مرسته لوست تشريح او توضيح کوي، ښاغلی ښوونکی په څينو ټکو زيات ټينګار کوي او موضوع آسانه کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو د تختې پر مخ ټولې کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو ګروپونو وېشي، دنده ورکوي تر څو هر يو ګروپ د حلال او مشروع کسب او کار په اړه يو له بل سره بحث وکړي. پايلې يې په بېلو بېلو پاڼو کې وليکي، ښاغلی ښوونکی د ګروپي کار پر وخت ټولګی کنترولوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ګروپي کار له پای ته رسېدلو وروسته د بحث پايلې ارزوي او زده‌کوونکي هڅوي. | شي.<br>زده کوونکې دې د لوست تشريح ته غوږ شي.<br>زده‌کوونکي دې له تختې څخه کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>زده‌کوونکي دې په مناسبو ډلو کې برخه واخلي او په خپلو منځونو کې دې بحث وکړي. |
| ۱۰ دقيقې | **پوښتنې:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په يوه يا څو پوښتنو ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي. |
| ۵ دقيقه | **د لوست لنډيز:**<br>پورتنی لوست په لاندې ټکو کې لنډولای شو:<br>۱. د اسلام مقدس دين د بې کارۍ او ټنبلی دين نه دی.<br>۲. هغه پيسې چې د حلال او مشروع کسب له لارې لاس ته راځي له برکت او فيض څخه ډکې دي.<br>۳. د حلال ما ل لاس ته راوړل د (لمونځ، روژې، زکات او حج ...) د فريضې له اداء کولو وروسته تر ټولو زيات ثواب لري.<br>٤. ټول مسلمانان پدې مکلف دي چې د حلا ل کسب د پيدا کولو لپاره کوښښ وکړي، تر څو خپل ژوند په عزت او شرف کې تېر کړي او د نورو هيوادوالو او نړيوالو لپاره نمونه و ګرځي. | زده‌کوونکي دې د لوست لنډيز ته غوږ شي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه معلومات ورکوي، د هغې په سرته رسولو يې ګماري. | |

## دولسم لوست:

**عنوان: د الله (ج) نعمتونه**

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقې.**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

١. حدیث شریف د لوست له متن سره په صحیح ډول ولوستلای شي.
٢. د لوست محتوا او مطلب زده کړي.
٣. د حدیث شریف په معنا پوه شي.
٤. د الله تعالی نعمتونه خلکو ته ور وپېژندلای شي.
٥. د الله تعالی په نعمتونو اعتراف وکړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

مسلمان باید وخت پېژندونکی وي، له ښو وختونو څخه د خپل دین او آخرت لپاره ګټه واخلي، ځکه هېڅکله فرصتونه تل پاتې نه، بلکې موقت وي، لکه: د ځوانۍ دوره یو فرصت دی چې له تېرېدلو څخه وروسته بیا نه راګرځي، بلکې د انسان په ژوند کې یو ځل راځي که چېرې انسان خپلو کارونو ته په ځیر سره وګوري نو دا ورته ثابتېږي چې باید له فرصتونو څخه ښه ګټه تر لاسه کړي، تر ټولو غوره به دا وي چې خپله ځواني پداسې کارونو کې تېره کړو چې زموږ لپاره په آخرت کې د ثواب لامل وګرځي، سره لدې چې پدې پوهېږو چې الله تعالی د ژوند د هرې لحظې له موږ څخه پوښتنه کوي، چې له دې جملې څخه یې د ځوانۍ عمر مهم دی، د هغې په هکله الله تعالی له موږ څخه پوښتنه کوي، د الله تعالی په وړاندې به هغه ته ځواب وایو.

باید له وخت څخه ګټه واخلو او پرې نهږدو چې زموږ د ژوند یوه لحظه هم بې ځایه ولاړه شي، او موږ په هغې کې د خیر کار تر سره نه کړو.

ډېر خلک شته چې خپل فارغ وخت په بې ځایه کارونو او ګناه کې لګوي، پدې فکر کې وي چې په نورو فارغو وختونو کې به د ثواب کار تر سره کوي، خو داسې وخت هم راځي چې فرصت او فراغت له لاسه ورکوي او نه شي کولای چې د خیر کار تر سره کړي.

بله د روغتیا مسئله ده، ډېر مسلمانان شته چې له خپلې روغتیا څخه ګټه نه اخلي، په نن او سبا خپل وخت تېروي، خو یو وخت راځي چې هغه ناروغ کېږي او نه شي کولای چې نېک او ښه کارونه تر سره کړي، بدني قوت یې دومره ضعیف کېږي چې نه شي کولای د خیر کارونه تر سره کړي.

ډېر خلک شته چې ډېره سرمایه لري خو خپله سرمایه په بدو کارونو او ناوړه اخلاقو لګوي، دې ته نه حاضرېږي چې خپل مال د خیر په کارونو کې په مصرف ورسوي. خو کله چې له کومې ناروغۍ سره مخ شي بیا کوښښ کوي چې خپل مال د خپل ځان د ژغورنې لپاره مصرف کړي، چې پدې وخت کې فرصت له ده سره ملګرتیا نه کوي، ناروغي ورسره مل کېږي تر هغه چې مرګ ته ورسیږي.

همدارنګه په حدیث شریف کې یو بل فرصت ته اشاره شوې ده، چې هغه له مرګ څخه مخکې ژوند دی، هغه باید له لاسه ور نه کړو او له وجود څخه یې غافل نه شو. که چېرې موږ د دغو فرصتونو په ارزښت پوه شو نو باید د هغې یوه

لحظه هم بې ځایه او بې ګټې تېره نه کړو بلکې دا لازمه ده چې له دغو فرصتونو څخه ګټه واخلو او د خیر کارونه په کې تر سره کړو.

**د کلمو معنا:**

۱. **کاینات:** موجودات.

۲. **ابد:** تل.

**د تدریس تګلاره:**

نمونوي قرائت، پوښتنې او ځواب، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، تخته، تباشیر او د امکان په صورت کې کاک کاغذ.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>– ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، د الله تعالی له حمد، ثناء او پر پیغمبر صلی الله علیه وسلم له درود ویلو وروسته د زده‌کوونکو د احوا ل پوښتنه کوي او ټولګي تنظیموي، حاضري اخلي او بیا مخکینی لوست د څو پوښتنو په کولو سره ارزوي، لکه:<br>✓ څوک ویلای شي چې حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله تعالی د هجرت په څووم کال او د چا د خلافت په وخت کې وفات شو؟<br>– ښاغلی ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې او نوي لوست ته د عنوان پیدا کولو په غرض له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: څوک د هغو نعمتونو چې په دنیا کې الله تعالی موږ ته راکړي دي نومونه اخیستلای شي؟ | زده‌کوونکي دې مقدماتي پوښتنو ته ځواب ووایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښوونکی د صحیح ځواب له اورېدلو وروسته د نوي لوست عنوان پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او خپله د (کاینات، او ابد) کلمې له معنا سره پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ټولګي دوه تنه هغه زده‌کوونکي چې په فعالیت کې ډېر لږ ګډون کوي د ټولګي مخې ته راغواړي او لارښوونه ورته کوي تر څو یو د لوست څنډېز عنوانونه ولولي او بل یې په ښکلي خط سره پر تخته ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف متن دوه ځلې لولي او وروسته له څو تنو زده‌کوونکو غواړي چې هغه ولولي او په خپله د هغوی لوستل تصحیح کوي. وروسته ښاغلی ښوونکی څو تنه زده‌کوونکي پدې ګماري چې د لوست متن لیکه پر لیکه ولولي او په خپله د هغو غلطی تصحیح کوي ښاغلی ښوونکی د لوستلو پر وخت د لوست ځینې ستونزمنې کلمې په زده‌کوونکو تکراروي او د ټولګي پر تخته باندې | زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته وګوري او لوست دې په پټه خوله ولولي.<br><br>کوم زده‌کوونکي چې د لوست په ویلو مکلف شوي هغوی دې لوست ولولي او نور دې ورته غوږ شي.<br><br>یو زده کوونکی دې د حدیث شریف کلمې او بل زده کوونکی دې د |

| وخت | فعالیتونه | ارزونه |
|---|---|---|
| | یې لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف متن په یو زده‌کوونکي او معنا یې په بل زده‌کوونکي په تخه باندې لیکي، ښاغلی ښوونکی د کلمو په لیکلو په ځانگړي ډول د حدیث شریف د متن په لیکلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د تختې له مخې کلمې زده‌کوونکو ته لولي او وروسته ټولو زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې ټولې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ځنډیزو عنوانونو په مرسته لوست تشریح او توضیح کوي، د لوست په ځینو عمده ټکو زیات ټینگار کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو گروپونو وېشي، او دنده ورکوي تر څو هر یو گروپ د الله تعالی د لویو او ارزښتناکو نعمتونو په اړه یو له بل سره بحث وکړي، پایلې یې په بېلو بېلو پاڼو کې ولیکي، ښاغلی ښوونکی د هر گروپ له نماینده څخه غوښتنه کوي تر څو د تختې مخې ته راشي او هغه پایلې چې د بحث په نتیجه کې لاس ته راغلې دي په لوړ آواز سره ووایي.<br>– ښاغلی ښوونکی د گروپي کار له پای ته رسېدلو وروسته د بحث پایلې ارزوي او زده‌کوونکي هڅوي. | هغو معنا پر تخته ولیکي.<br><br>زده‌کوونکي دې د تختې پر مخ ټولې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br><br>زده‌کوونکي دې د لوست تشریح ته غوږ شي.<br><br>زده‌کوونکي دې په ډلو کې له ښه تنظیم څخه وروسته د حدیث شریف او د هغه د گټو په اړه یو له بل سره بحث وکړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>پورتنی لوست په لاندې ټکو کې لنډولای شو:<br>۱. روغتیا، ځواني، بډایي، فرصت او ژوند د الله تعالی هغه لوی او ارزښتناک نعمتونه دي چې په خپلو بندگانو یې د شفقت له مخې لورولي دي.<br>۲. هر سړی باید د الله تعالی له لوري د ورکړل شویو نعمتونو څخه پوره گټه واخلي. | زده‌کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ شي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو څخه غواړي تر څو د حدیث شریف د مفاهیمو او د الهي نعمتونو په اړه یوه مقاله ولیکي. | |

## دیارلسم لوست:

**عنوان: د مزدور حق باید ډېر ژر ورکړل شي**

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقې.**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

١. حدیث شریف او د لوست متن په صحیح ډول ولوستلای شي.
٢. د لوست مفهوم زده کړي.
٣. د کلمو معنا زده کړي.
٤. په خپل ورځني ژوند کې خپله خواخوږي او زړه سوی ښکاره کړي.
٥. یو او بل پر نورو باندې شفقت او زړه سوي ته را وبولي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په ډېرو هېوادونو کې په ځانګړي ډول زموږ په هېواد کې ډېر خلك د زده‌کړې له نعمت څخه بې برخې دي، له دې امله که چېرې دوی کوم کار تر سره کوي هغه د مزدورۍ په شکل تر سره کوي، په حقیقت کې هغه خلك چې د ورځنـي مزد په بدل کې کار کوي هماغه د دوی اقتصادي جوړښت تشکیلوي، که چېرې موږ هغو خلکو ته چې لـه مـوږ سـره د ورځني مزد په بدل کې کار کوي او موږ هره ورځ د ده د کار بدل ورنه کړو کېدای شي چې په هماغه شپه بانـدې د ده ماشومان په وږې ګېډه ویده شي یا به ناروغان لري، وس به یې نه وي چې هغو ته درمل واخلي، دا هغه کارونـه دي چې پر موږ دا لازموي چې ډېر زر یې د کار بدل ورکړو او حق یې اداء کړو، اجیر چې پدې حدیث شریف کې تـرې یادونـه شوې ده یوازې هغه سړي ته نه ویل کېږي چې له موږ سره د ورځني مزد په بدل کې کار کوي بلکې ټـول هغـه خلـك چې د کوم سړي یا دولت لپاره کار کوي اجیر ورته ویل کېږي، ځکه دوی ټول د کار په بدل کې اجوره اخلي، هغه کـه اجوره یې د ورځې په بدل کې ورکول کېږي او که د میاشتې په بدل کې، په عام ډول ویلای شـو چـې ټـول اجیـران دا حق لري چې د کار له پای ته رسولو سره سم یې زر تر زره باید حقوق ورکړل شي، یوه له هغو ستونزو څخـه چـې پـه اوسنیو حکومتونو، مؤسساتو او نورو نهادونو کې موجوده ده دا ده چې د خپلو کار کوونکو د حقوقـو پـه اداء کولـو کـې پلمې کوي، او پدې پلمو سره د خپلو کارکوونکو ناخوښي را منځ ته کوي.

**د کلمو معنا:**

١. **جلیل القدر:** د لوړ قدر او منزلت خاوند.
٢. **انرژي:** قوت.
٣. **جانبین:** دوه لوري.
٤. **سوء استفاده:** ناوړه ګټه اخیستل.

**د تدریس تګلاره:**

نمونوي قرائت، پوښتنې او ځواب، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، تخته او تباشیر.

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>– ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم لـه سـلام اچولـو، او د الله تعالی له حمـد، ثنـاء او پـر پیغمبـر صلی الله علیه وسـلم لـه درود ویلـو وروسـته د زده‌کوونکـو د احـوا ل پوښـتنه کـوي ټـولګی تنظیمـوي، حاضري اخلي بیا مخکینی لوست د څو پوښـتنو پـه کولـو سره ارزوي، لکه:<br>✓ څوک د حدیث شریف دا برخـه (**اغتنِمْ خَمساً قبل خَمسٍ**) معنـا کـولای شي؟<br>✓ هغه ارزښتناک ټکي چې له حدیث شـریف څخـه ترلاسـه کېږي کـوم دي؟<br>– ښاغلی ښوونکی د نوي لوسـت پـه اړه د انګېـزې او نـوي لوسـت تـه د عنوان پیدا کولو په غرض له زده‌کوونکو څخه پوښـتنې کـوي، لکـه: د کار خاوند څه وخت باید د کار ګر د کار بدل ورکړي؟ | زده‌کوونکي دې مقـدماتي پوښتنو ته ځواب ووایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښوونکی د صحیح ځـواب لـه اورېـدلو وروسـته د نـوي لوسـت عنوان په ښکلي خط پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او د لوست ستونزمنې کلمې له خپلو ځانونو سره یاد داشت کړي او په خپله په عین وخت کې د (جلیـل القـدر، انـرژي، جـانبین او سـوء استفادې) کلمې له معنا سره پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ټولګي دوه تنه هغه زده‌کوونکي چې په فعالیت کې ډېر لږ ګډون کوي د ټولګي مخې ته راغواړي او لارښوونه ورته کوي تر څو یو د لوست څنډېز عنوانونه ولولي او بل یې په ښکلي خط سـره پر تخته ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د زده‌کوونکـو پاملرنـه خپلـو کتـابونو تـه را اړوي او د لوست متن پـه لـوړ آواز سـره دوه ځلې لـولي او وروسـته لـه څـو تنـو زده‌کوونکو څخه غواړي تر څو د حدیث شریف متن لـه پـاتې لوسـت سره لیکه پر لیکه ولولي تر څو د دوی له سمو لوستلو څخه ډاډمن شي.<br>– ښاغلی ښوونکی لومړی د حدیث شریف او لوست ستونزمنې کلمې پـر تخته لیکي او هغه تشریح کوي، وروسته هغه په یوه یا دوو زده‌کوونکو باندې لولي، او په پای کې زده‌کوونکو تـه دنـده ورکـوي تـر څـو هغـه | زده‌کـوونکي دې پـه پټـه خوله مطالعه وکړي.<br><br>یـو زده کـوونکی دې د لوسـت بغلـي عنوانونـه ولـولي او بـل دې یـې ولیکي.<br><br>ځینـې زده‌کـوونکي دې د ښـوونکي لـه لارښـوونې سـره سـم د لوسـت مـتن ولـولي او نـور دې ورتـه غوږ شي. |

| | | |
|---|---|---|
| | کلمې له معناګانو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف متن دوه ځلې ترجمه کوي وروسته له څنلېز عنوانو څخه په ګډې اخیستلو سره لوست زده‌کوونکو ته تشریح او توضیح کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو ګروپونو وېشي، او دنده ورکوي تر څو هر یو ګروپ له مزدور سره د کار خاوند د چلند په اړه یو له بل سره بحث وکړي. او دا په ډاګه کړي چې ښه چلند کوم دی؟ او زموږ په ټولنه کې د کار خاوند او مزدور تر منځ چلند څرنګه دی؟<br>– ښاغلی ښوونکی د ګروپي کار پر وخت ټولګی کنترولوي او د اړتیا پر وخت هغوی ته لارښوونه کوي او هڅوي یې او د ګروپي کار له پای ته رسېدلو وروسته یې ټول کار ارزوي. | زده‌کوونکي دې ستونزمنې کلمې له معنا سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>زده‌کوونکي دې د لوست تشریح ته غوږ شي.<br>زده‌کوونکي دې په مناسبو ډلو و وېشل شي او وروسته دې د حدیث شریف د ګډو په اړه یو له بل سره بحث وکړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>پورتنی لوست په لاندې ټکو کې لنډولای شو:<br>۱. زموږ په هېواد کې بیوزلي وزګار خلک ډېر زیات دي چې د یوې مړۍ ډوډۍ پیدا کولو لپاره کار کوي.<br>۲. پیغمبر صلی الله علیه وسلم امر کړی دی چې له مزدورانو سره دې ښه چلند وشي او د کار بدل دې ژر ورکړای شي.<br>۳. اجیران او کارګاران هم باید په هغه کار کې چې ورته سپارل شوی دی اخلاص او کوښښ وکړي ترڅو معاش حلا ل کړي.<br>٤. باید د کار د خاوند او کارګر تر منځ متقابل احترام موجود وي. | زده‌کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ شي. |
| | **کورنۍدنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي مکلفوي تر څو هر یو د کارګرانو سره د ښه چلند په اړه یوه مقاله ولیکي چې له یوه مخ څخه کمه نه وي. | |

## خوارلسم لوست:

**عنوان: د علم زده‌کړه فرض ده**

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقې.**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

١. د حدیث شریف متن سم ولوستلای شي.
٢. د لوست مفهوم زده او د علم په ارزښت پوه شي.
٣. د حدیث شریف د متن د کلمو معنا زده کړي.
٤. د علم په زده کولو کې کوښښ وکړي.
٥. یو بل او د ټولنې وګړي د علم زده کولو ته و هڅوي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د علم زده‌کړه د مسلمان په ژوند کې له ډېر لوی ارزښت څخه برخمنه ده، په حقیقت کې د علم زده‌کړه د ټولنې د پرمختګ او د انسان د انسانیت د اثبات اصلي لاملونه دي، اسلام هم د علم زده‌کړې ته ډېر ارزښت ورکړی دی، لومړنی آیت چې پر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نازل شوی دی د علم زده‌کړې ته دعوت دی، د علق د سورت پنځه لومړني آیتونه د دې حقیقت ښکارندوی دي، همدارنګه په نورو آیتونو کې په بې علمه خلکو باندې د علم د خاوندانو لوړوالي او غوره والي ته اشاره شوې ده، الله تعالی فرمایي: ((قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ)) [الزمر : ٩] ژباړه: آیا هغه خلك چې علم لري او هغه خلك چې علم نه لري سره برابر دي؟ دا په خپله دا په ډاګه کوي چې هغه کسان چې علم نه لري او هغه کسان چې علم لري سره برابر کېدای نه شي، د قرآني آیتونو تر څنګ د نبي کریم صلی الله علیه وسلم ډېر زیات احادیث شته چې مسلمانان د علم زده‌کړې ته هڅوي، آن تر دې چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: ملائکې خپل وزرونه د علم د زده‌کوونکو تر پښو لاندې فرش کوي او په یو بل حدیث شریف کې راغلي دي: که چېرې د علم زده کوونکی د علم په زده‌کړه کې مړ شي، د الله تعالی په لار کې وفات شوی او الله تعالی ورته د شهادت درجه ورکوي.

**د کلمو معنا:**

١. **طول:** اوږدوالی.
٢. **قرابت:** نیږدې والی.
٣. **رحلت:** سفر، مرګ.
٤. **شریعت:** لاره، کامل دین.

**د تدریس تګلاره:**

نمونوي قرائت، پوښتنې او ځواب، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، تخته، تباشیر او د امکان په صورت کې کاك کاغذ.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>– ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، او د الله تعالی له حمد، ثناء او پر پیغمبر صلی الله علیه وسلم باندې له درود ویلو څخه وروسته د زده‌کوونکو د احوا ل پوښتنه کوي او د ټولګي له تنظیم او د حاضرۍ له اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست د څو پوښتنو په کولو سره ارزوي، لکه:<br>✓ د کاریګر حق باید څه وخت ورکړل شي؟<br>– ښاغلی ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې پیداکولو او نوي لوست ته د عنوان پیدا کولو په غرض له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: څوک ویلای شي چې د کوم علم زده‌کړه پر مسلمان باندې فرض ده؟ | زده‌کوونکي دې پوښتنو ته ځواب ووایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښوونکی د سم ځواب له اورېدلو وروسته د نوي لوست عنوان په ښکلي خط سره پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو لوست د کتاب له مخې په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې نښاني کړي، خپله د لوست ستونزمنې کلمې لکه (طول، قرابت، رحلت او شریعت) له معنا سره پر تخته لیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی له یو تن زده‌کوونکي څخه غواړي تر څو له کتاب څخه په ګټه اخیستلو د لوست څنلېز عنوانونه په ښکلي خط سره پر تخته ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف متن دوه ځلې د نمونې په ډول لولي، وروسته له څو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي تر څو هغه ولولي او په خپله د هغوی ویل سموي.<br>– ښاغلی ښوونکی حدیث شریف دوه ځلې ترجمه کوي وروسته د لوست په ستونزمنو کلمو بحث کوي، بیا د څنلېزو عنوانونو په مرسته حدیث شریف په بشپړه توګه شرح کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی څو تنه زده‌کوونکي ګماري تر څو د لوست متن لیکه پر لیکه په پټه خوله مطالعه کړي خپله د دوی لوستل تصحیح کوي او ځواب وایي.<br>– ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو ګروپونو وېشي، او دنده ورکوي تر څو هر یو ګروپ د علم د زده‌کړې د ارزښت او په فردي | زده‌کوونکي دې لوست په پټه خوله مطالعه کړي.<br><br>یو زده کوونکی دې څنلېز عنوانونه ولولي او بل زده‌کوونکی دې ولیکي.<br><br>څو تنه زده‌کوونکي دې لوست ولولي.<br><br>زده‌کوونکي دې د تختې پر مخ ټولې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

| | | |
|---|---|---|
| | او ټولنیز ژوند کې د هغو د تاثیراتو په اړه یو له بل سره بحث وکړي او د خپل بحث پایلې د لنډو ټکو په شکل په یوه پاڼه کې ولیکي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ګروپي کار پر وخت ټولګی کنترولوي او د اړتیا په صورت کې له ځینو ګروپونو سره مرسته کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ګروپي کار له پای ته رسېدلو څخه وروسته د هر ګروپ نماینده د تختې مخې ته راغواړي تر څو د خپل بحث پایلې په لوړ آواز سره ولولي او ښاغلی ښوونکی د لوستلو د پایلو مهم ټکي له تکرار پرته پر تخته لیکي او په پای کې له یوه لنډ بحث او یوې لنډې ارزونې سره له ټولو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هغه ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده‌کوونکي دې د لوست تشریح ته غوږ شي.<br><br>زده‌کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي وروسته دې د حدیث شریف او د هغه د ګټو په اړه یو له بل سره بحث وکړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>پورتنی لوست په لاندې ټکو کې لنډولای شو:<br>۱. د علم زده‌کړه په ځانګړې ډول د ضروري علومو لکه د عقایدو او احکامو زده‌کړه په هر عاقل مسلمان نارینه او ښځینه باندې فرض ده.<br>۲. که څوک پرته له شرعي عذر څخه د علم له زده‌کړې څخه تنبلي وکړي یقیناً چې په دنیا کې به خوار او ذلیل شي او په آخرت کې به د الله تعالی تر پوښتنې را شي.<br>۳. بې سوادي او جهل د بدبختۍ او وروسته پاتې کېدو لامل ګرځي، او د ټولنې د پرمختګ تر ټولو غوره وسیله علم دی. | زده‌کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ شي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي تر څو هر یو په خپل کور کې د علم د فضیلت او د هغه د فردي او ټولنیزو اغیزو په اړه یوه مقاله چې له پنځه لسو کرښو څخه کمه نه وي ولیکي. | |

## لومړی لوست:

**سرلیک: مدینې منورې ته د پیغمبرﷺ هجرت**

**وخت: یودرسي ساعت (٤٥ دقیقې)**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

١. مدینې منورې ته د هجرت کولو او له پیغمبرﷺ سره د ملګرتیا لپاره د ابوبکرصدیق ﷺ د اجازې ترلاسه کولو په اړه معلومات حاصل کړي.
٢. د مشرکانو له دسیسې څخه د پیغمبرﷺ د خبرتیا په هکله پوهه ترلاسه کړي.
٣. د پیغمبرﷺ د وتلو او په کور کې د څملاستو لپاره د حضرت عليﷺ د پرېښودلو په باب معلومات حاصل کړي.
٤. غار ثور ته د حضرت محمدﷺ د پناه وړلو په هکله معلومات حاصل کړي.
٥. د پیغمبرﷺ او حضرب ابوبکر صدیقﷺ په نیولو د انعام ورکولو په هکله د دښمنانو له هڅو خبرشي.
٦. د هجرت مفهوم وپیژني او د اړتیا پرمهال ورڅخه استفاده وکړي.
٧. د لوست ګټو ته پاملرنه وکړي اوپه خپل ژوند کې یې عملي کړي .

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**ابوبکر:** نوم یې عبدالله د پلار نوم یې عثمان چې په ابو قحافه شهرت لري د نیکه نوم یې عامر او د نبيﷺ سره یې په مرهٔ نومی نیکه کې نسب یو ځای کیږي د عام الفیل له واقعې څخه دوه کاله او شپږ میاشتې وروسته زیږیدلی، د مورنوم یې سلما د صخر لور ده، دې هم اسلام منلی و او هجرت یې وکړ.
ابوبکرﷺ سربیره پر دې چې تاجر و په قریشو کې یو منلی شخصیت هم و، پیغمبرﷺ ورته د صدیق لقب ورکړ د صحیحینو حدیث دی چې یوه ورځ پیغمبرﷺ، ابوبکر صدیق،عمر او عثمانﷺ د احد په غره ولاړ وو غر وخوځید پیغمبرﷺ ورته وویل: احده! مه خوځیږه نبي، صدیق او دوه شهیدان درباندې ولاړ دي.
**دارالندوه:** د قصی بن کلاب کور و، قریش به د مشورو او مجلسونو لپاره پکې راټولیدل.
**ابوجهل:** نوم یې عمرو، د هشام زوی د نیکه نوم یې المغیره د قریشو د بنو مخزوم له قبیلې څخه و اود پیمغبرﷺ تر ټولو سخت دښمن و، کافرانو به ورته ابوالحکم ویلې او په مسلمانانو کې په ابوجهل پیژندل کیده.
**سراقه:** د پلار نوم یې مالک، د نیکه نوم یې جعشم د قریشو د بني کنانه قبیلې او له مشهورو صحابه وو څخه دی د حضرت عثمانﷺ د خلافت په لومړیو وختونو کې وفات شو.
کله چې سراقه اسلام راووړ پیغمبرﷺ ورته وویل چې د فارس ښار به الله تعالی ستا په لاس فتح کړي او د کسری دارایي به په غنیمت واخلې، سراقه ډېره لرې وګڼله خو نبيﷺ وویل ژر ده چې د کسری د باچا ګاڼه به سراقه واغوندي هماغه وو چې د حضرت عمرﷺ د خلافت پر وخت همداسې وشو.

**د تدریس طریقې:** توضیحي مباحثوي – پوښتنه او ځواب.
**درسي مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د سیرت او تاریخ کتابونه، تخته او تباشیر.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده‌کوونکي فعالیت |
|---|---|---|
| ۵<br>دقیقې | **مقدمه:** ښوونکی ټولګي ته له ورتلو له حمد، ثنا او سلام څخه وروسته زده‌کوونکو ته ځان ورپیژني، د نهم ټولګي زده‌کوونکو ته د بریالیتوب مبارکي وایي د حاضرۍ اخیستلوپه ترڅ کې به زده‌کوونکي خپل ځان هم معرفي کړي . د سیرت په هکله د عمومي معلوماتو په وړاندې کولو زده کوونکو ته وایي چې په اتم ټولګي کې مو له ښکاره بلنې – څخه نیولې – دعقبې تردویم بیعت – پورې موضوعګانې ولوستې، پدې ټولګي کې به انشاءالله د رسول الله صلی الله علیه وسلم له هجرت نه نیولې د احد تر غزا پورې موضوعګانې ولولئ له همدې وینا سره سم د نوي لوست سرلیک ، تاریخ او ورځ پر تخته لیکي او لوست پیل کوي. | زده‌کوونکي باید د ښوونکي له راتلو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي په ډېر درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم السلام ووایي له هغه څخه دې مننه وکړي او بیا دې یویو ځان معرفي کړي. |
| ۲۵<br>دقیقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي ، بیا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي چې د هرې درجې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱- مدینې منورې ته د هجرت کولو په مقصد د ابوبکر صدیق رضي الله عنه کوښښ.<br>۲- د پیغمبر علیه السلام پر ضد د مشرکانو دسیسه او ورڅخه د پیغمبر علیه السلام خبرتیا.<br>۳- د پیغمبر علیه السلام له کوره وتل او د امانتونو سپارلو لپاره پر خپل بستر د حضرت علي رضي الله عنه پرېښودل.<br>٤- د ثورغار ته پنا وړل.<br>٥- د پیغمبر علیه السلام او حضرت ابوبکر رضي الله عنه د نیولو لپاره د مشرکینو لخوا د انعام ورکولو اعلان.<br>٦- د لوست د ګټو بیانول.<br>ښوونکی د لوست په مطالبو پورې اړوندې پوښتنې کوي تر څو زده‌کوونکي له ځان سره په لوست کې شریک وساتي او ځوابونه یې اصلاح کړي.<br>د لوست د موضوع په هکله که چیرې کومه ستونزه موجوده وي د هغې د حل لپاره هڅه کوي .<br>په لوست کې ورکړی شوی فعالیت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو | زده‌کوونکي دلوست متن په ورو لولي<br>زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر شي.<br>د ښوونکي تشریح ته دې متوجه شي<br>-زده‌کوونکي دلوست دستونزو دحل لپاره هڅه کوي ، که چیرې کومې پایلې ته ونه رسیدل بیا به له ښوونکي څخه مرسته غواړي .<br>زده‌کوونکي دې ځوابونه ووایي او د لوست مهم ټکي دې په کتابچو کې ولیکي |

| وخت | د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| | سره مطرحوي او په پای کې د لوست لنډیز وړاندې کوي. | |
| ۵ دقیقې | **لنډیز:** کله چې د مکې مشرکینو د ابوالجان ابلیس علیه اللعنة په ګډون د پیغمبر علیه السلام د وژلو دسیسه جوړه کړه الله تعالی پیغمبر علیه السلام له دغې دسیسې څخه خبر کړ د شپې په داسې حال کې چې مشرکانوېې کور محاصره کړی و د محاصره کوونکو په صفونو کې یې د یس سورت لوسته له کوره ووت او پر خپل ځای یې حضرت علی (رض) پرېښود. رسول الله صلی الله علیه وسلم له حضرت ابوبکر صدیق(رض) سره چې لا پخوایې د هجرت کولو قصد کړی و د ثور غار ته ولاړ، درې شپې او ورځې هلته و، کله چې مشرکین د خپلې دسیسې په شنډیدلو باوري شول نو لټون یې ورو ورو سوړشو هماغه وو چې پیغمبر علیه السلام د خپل ملګري ابوبکر صدیق(رض) سره د ثور له غار څخه د مدینې په لور روان شو، په لاره کې سراقه بن مالك چې لا یې اسلام نه و راوړی دهغه زیات انعام د لاسته راوړلو په مقصد چې مشرکینو د دوی د نیولو لپاره اعلان کړی و دوی تریو ځایه تعقیب کړل خو کله چې ورته نږدې شو آس یې په وچه ځمکه کې تر زنګنو پورې ښخ شو نوسراقه له پیغمبرﷺ څخه امان نامه واخیستله او بیرته راستون شو پیغمبر علیه السلام او ورسره ملګری یې د الله تعالی په فضل سره مدینې منورې ته ورسیدل. | - زده‌کوونکی باید دلوست لنډیزته غوږونیسي |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی په شفاهي او کتبي ډول زده‌کوونکي ارزوي او د لوست د زده‌کړې په اړه ځان ډاډمن کوي. | ـزده‌کوونکی پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی د کورنۍ دندې په هکله زده‌کوونکو ته لازم هدایات ورکوي. | ـ زده‌کوونکی دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

## دويم لوست:

**سرليک: مدينې منورې ته د پيغمبرﷺ رسيدل**

**وخت: يودرسي ساعت(٤٥ دقيقې)**

**موخې : زده‌کوونکي بايد :**

١. قبا ته د پيغمبرﷺ له رسيدلو او د انصارو مسلمانانو له پلوه يې د تاوده هرکلي په هکله معلومات حاصل کړي.
٢. د بني نجار قبيلې د خلکو په ملتيا له قبا څخه مدينې منورې ته د نبي کريم صلی الله عليه وسلم له ورتگ څخه خبرشي.
٣. په مدينې منورې کې د پيغمبرﷺ د لومړني کار په هکله پوه شي .
٤. پوه شي چې مسجد د اسلامي قوتونو د راټوليدلو ځای دی.
٥. د لوست گټې وپيژني .

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د قبا مسجد:** د دغه جومات لومړنۍ تيره پيغمبرﷺ کيښوده ورپسې حضرت ابوبکرصديقؓ او بيا حضرت عمرؓ تيرې کيښودې.

**د جمعې لمونځ:** د جمعې دغه لمونځ چې پيغمبرﷺ د بنوسالم په محله کې له سلو تنو مقتديانو سره ادا کړ د پيغمبرﷺ لومړنی د جمعې لمونځ و او لومړنی خطبه وه.

**بنو نجار:** بنو نجار اصلاً د پيغمبرﷺ د نيکه عبدالمطلب ماما گان وو، ځکه چې مور يې سلمی بنت زيد د مدينې منورې له بنو نجارو څخه وه.

**ابو ايوب انصاري:** اصلي نوم يې خالد د پلار نوم يې زيد بن ثعلبه دی په ابو ايوب باندې يې شهرت درلود په عقد مواخات کې پيغمبرﷺ د مصعب بن عميرؓ ورور وگرځاوه.

**د نبوي جومات بنياد اېښودل:** د نبوي جومات ځمکه د دوو يتيمانو وه چې سهل او سهيل نوميدل د رافع بن عمرو زامن وو، رسول‌اللهﷺ ورڅخه په بيه واخيسته، قيمت يې ابوبکرصديق ؓ ورکړ او جومات يې پکې جوړ کړ،جومات پر خپل حال و، تر څو چې حضرت عمرؓ د خپل خلافت پر وخت وغوښتل چې پراخه يې کړي د حضرت عباسؓ کور چې د جومات په څنگ کې و، هغه يې ترې وغوښت، هغه خپل کور د الله تعالی په نامه مسلمانانو ته وباښه، حضرت عمرؓ هغه کور له جومات سره يو ځای کړ بيا حضرت عثمانؓ دغه جومات له تيرو څخه جوړ کړ. وروسته مروان بن حکم بيا وليد بن عبدالملک بن مروان او وروسته څو ځلې د مختلفو کسانو له خوا جوړ او پراخه کړای شو.

**د تدريس طريقې:** توضيحي مباحثوي – پوښتنه او ځواب

**درسي مرستندويه توکي:** درسي کتاب، د سيرت او تاريخ کتابونه، تخته او تباشير.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکي فعالیت |
|---|---|---|
| ٥ دقیقې | **مقدمه** :ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو لـه سلام او احوال پوښتنې څخه وروسته ټولګی منظم کوي، حاضري اخلـي د زده کوونکـو له ستونزو څان خبروي، د ادارې په مرسته د هغـو د حل لارې برابـروي او د امکـان پـه صـورت کـې کـورنی دنـده او نظافـت ګوري.<br>نوي لوست ته د زده کوونکو د هڅونې او د پخواني لوسـت د ارزونې لپاره پوښتنه مطرحوي وایـي: څـوک د پرونـي لوسـت مطلب په څو لنډو ټکو کې ویلی شي او ګټې یې کومې دي ؟ د سم ځواب په اورېدلو د نوي لوست سرلیک پـر تختـه لیکـي او نوی لوست پیل کوي. | زده کـوونکي د ښـوونکي لــه راتلـو مخکې په ټولګي کـې مـنظم ناسـت وي په ډېر درنښت د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم السلام وایـي، دهغـه خبـرې پـه غور اوري او د پوښتنو ځواب ورکوي. |
| ٢٥ دقیقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سـرلیکونه پـر تختـه لیکـي ، بیـا دلوست عبارت په څو تنو زده کوونکو لولي او هغوی تـه لانـدې مطالب او مفاهیم پـه ساده او لنـډو عبـاراتو سره داسـې تـشریح کوي چې د هرې درجې زده کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>١- قبا ته د پیغمبر صلی الله علیه وسلم رسیدل.<br>٢- مدیني منورې ته د بني نجارو د ځوانانو په ملتیا د پیغمبر علیه السلام ننوتل<br>٣- تر ټولو د مخه د مسجد شریف جوړول.<br>٤- د لوست ګټو ته د زده کوونکو متوجه کول.<br>ښوونکی د لوست مطالبو پورې اړوندې پوښتنې کـوي تـر څـو زده کـوونکي لـه ځـان سـره پـه لوسـت کـې شـریک وسـاتي او ځوابونه یې اصلاح کړي.<br>د لوست د موضوع په هکله، که چیـرې کومـه سـتونزه موجـوده وي د هغې د حل لپاره هڅه کوي<br>په لوست کې ورکړی شوی فعالیت په خپل ځای کې له زده کوونکو سره شریکوی او په پای کې د لوست لنډیز وړاندې کوي. | زده کوونکي دلوست متن په ورو لولي<br><br>زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر شي.<br>د ښوونکي تشریح ته دې متوجه شي<br><br>زده کوونکي ځوابونـه وایـي او د لوسـت مهم ټکي په کتابچو کې لیکي.<br>د لوست ګټې په ژوند کې پلي کوي.<br>- زده کوونکي دلوسـت دسـتونزو دحـل لپاره هڅه کوي، که چیرې کومې پـایلې ته ونـه رسـیدل، بیـا لـه ښـوونکي څخـه مرسته غواړي او د لوست مهم مطالب له ځان سره لیکي. |

| ۵ دقیقې | **لنډیز:** پیغمبر صلی الله علیه وسلم په خپل لومړي تم ځای یعنې قبا کې چې څلور ورځې هلته پاتې شو لومړی د قباء د مسجد بنسټ کیښود، ځکه چې مسجد په اسلام کې له عبادت څخه علاوه د سیاسي او ټولنیز مرکز حیثیت هم لري، مسجد د مسلمانانو لپاره د پوهنتون په شان دی، د ژوند په هرې برخې کې د زده کړې لپاره د مسلمانانو د مراجعې تر ټولو مهم ځای ګڼل کیږي . بیا د الله تعالی له امر سره سم د مدینې منورې په لور روان شو د بنو سالم په محله کې یې د جمعې خطبه واوروله او لمونځ یې ادا کړ او بیا مدینې منورې ته داخل شو په مدینې منورې کې یې لومړی د نبوي مسجد ډبره کیښوده او په خپله یې ورته تیږې راچلولې او کار یې پکې کاوه . | - زده کوونکي باید د لوست لنډیز ته غوږونیسي |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی دې په شفاهي او یا کتبي ډول زده کوونکي و ارزوي او د لوست د زده کړې په هکله دې ځان ډاډمن کړي. | ـ زده کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنی دنده:** ښوونکی د کورنی دندې په هکله زده کوونکو ته لازم هدایات ورکوي. | ـ زده کوونکي دې کورنی دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

## دریم لوست :

**سرلیک : د مسلمانانو تر منځ ورور ګلوي**

**وخت : یودرسي ساعت (٤٥ دقیقې)**

**موخې : زده‌کوونکي باید:**

١. د مهاجرینو او انصارو ترمنځ د وروړګلوۍ د تړون په هکله معلومات حاصل کړي .
٢. په مدینې منورې کې د میشتو قومونو سره د یووالي له تړون څخه خبرشي.
٣. وپوهیږي چې د مسلمانانو ترمنځ د وروګلوی رامنځته کول واجب دي .
٤. د لوست په ګټو وپوهیږي .

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات :**

**مواخات:** یعنې د ورور ګلوي تړون چې دوه ځلې شوی دی! یو ځل مخکې له هجرت څخه د صحابه ؤ په خپلو منځو کې ، لکه : د ابوبکرصدیق او عمر رضي الله عنهما ترمنځ ، د حمزه او زید بن حارثه رضي الله عنهما ترمنځ، د عثمان او عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنهما تر منځ، د زبیر بن عوام او ابن مسعود رضي الله عنهما ترمنځ، د عبیده بن حارث او بلال رضي الله عنهما تر منځ، د مصعب بن عمیر او سعد بن ابي وقاص رضي الله عنهما ترمنځ، د ابي عبیده او سالم رضي الله عنهما ترمنځ، دسعید بن زید او طلحه بن عبیدالله رضي الله عنهما ترمنځ، د علي رضي الله عنه او پیغمبرﷺ تر منځ . او بل ځل په مدینې منورې کې د مهاجرینو او انصارو تر منځ ، لکه : د ابوبکر او خارجه ترمنځ او دعبدالرحمن او سعد بن ربیع تر منځ .

کله چې دا آیت نازل شو:(و اولوا الارحام ) نو میراث اخیستل چې د مواخات د عقد پر اساس و نسخه شول.

**اوس او خزرج:**

اوس او خزرج په مدینې منورې کې دوه عربي قبیلې وې چې له اسلام څخه دمخه یې ټول خلك مشركان وو.

**د تدریس طریقې:** توضیحي ، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**درسي مرستندویه توکي :** درسي کتاب، د سیرت او تاریخ کتابونه ، تخته او تباشیر.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده‌کوونکي فعالیت |
|---|---|---|
| ٥ دقیقې | **مقدمه:** ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو له سلام او احوال پوښتنې وروسته ټولګی منظم کوي، حاضري اخلي د زده‌کوونکو له ستونزو ځان خبروي د ادارې په مرسته د هغو د حل لارې برابروي او د امکان په صورت کې کورنۍ دنده او نظافت ګوري. نوي لوست ته د زده‌کوونکو د هڅونې او د پخواني لوست د ارزونې لپاره پوښتنه کوي وایي: پیغمبرﷺ مدینې منورې ته په رسیدلو د اسلامي دولت د تشکیل لپاره تر ټولو مخکې کوم کارونه وکړل؟ د سم ځواب له اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیك پر تخته لیکي او نوی لوست پیل کوي. | زده‌کوونکي باید د ښوونکي له راتلو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي په ډېر درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم السلام ووایي او دهغه پوښتنو ته دې ځواب ورکړي . |

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۲۵<br>دقیقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي ، بیا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي چې د هرې درجې زده کوونکی ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱- د مهاجرینو په خپلو منځو کې او د مهاجرینو او انصارو تر منځ وروروګلوي .<br>۲- په مدیني منورې کې د بیلابیلو اوسیدونکو قبایلو ترمنځ د یووالي د تړون لاسلیکول .<br>۳- د لوست ګټو ته د زده‌کوونکو پام اړول.<br>ښوونکی د لوست مطالبو پورې اړوندې پوښتنې کوي تر څو زده‌کوونکي له ځان سره په لوست کې شریک وساتي او ځوابونه یې اصلاح کړي.<br>د لوست د موضوع په هکله که چیرې کومه ستونزه موجوده وي د هغې د حل لپاره هڅه کوي<br>په لوست کې ورکړای شوی فعالیت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره شریکوي او په پای کې د لوست لنډیز وړاندې کوي. | زده‌کوونکي دلوست متن په ورو لولي<br>زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر شي.<br>د ښوونکي تشریح ته دې متوجه شي<br>- زده‌کوونکي دلوست دستونزو دحل لپاره هڅه کوي ، که چیري کومې پایلې ته ونه رسیدل ، نو له ښوونکي څخه مرسته غواړي .<br>زده‌کوونکي دې ځوابونه ووایي او د لوست مهم ټکي دې په کتابچو کې ولیکي |
| ۵<br>دقیقې | **لنډیز:** د ورور ګلوۍ تړون د مسلمانانو تر منځ دوه ځله شویدی: یو له هجرت څخه مخکې د صحابه ؤ ترمنځ، بل له هجرت څخه وروسته د مهاجرینو او انصارو اصحابو تر منځ او په ځانګړې ډول د اوس او خزرج د قبیلوتر منځ .<br>په سیمه کې د امنیت د ټینګښت او د مسلمانانو د لا ښه قوت لپاره مسلمانانو په مدینې منورې کې له میشتو یهودو او مشرکینو سره د یووالی تړون لاس لیک کړ. | - زده‌کوونکي باید دلوست لنډیزته غوږونیسي |
| ۱۰<br>دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی دې زده‌کوونکي په شفاهي او یا کتبي ډول وارزوي.<br>ځان دې ډاډمن کړي چې د لوست موخې ترلاسه شوي دي. | _زده‌کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| **کورنۍ دنده:** ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه لازم هدایات ورکړي . تر څو یې له عملې کولو څخه په استفادې سره کورنۍ دنده په سمه توګه ترسره کړي. | | ـــ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

## څلورم لوست:

**سرليک:** **له نورو قبايلو سره د پيغمبرﷺ تړونونه**

**وخت:** **يودرسي ساعت(٤٥ دقيقې)**

**موخې : زده‌کوونکي بايد :**

١. د يهودو له قبايلو سره د پيغمبرﷺ د تړون له جزئياتو څخه خبرشي .
٢. وپوهيږي چې د عهد ماتول لويه ګناه ده .
٣. د لوست په ګټو وپوهيږي .

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات :**

په دغه تړون سره د مدينې منورې شاوخوا سيمې د رسول الله ﷺ تر مشرتابه لاندې د يوه وفاقي دولت بڼه غوره کړه چې مرکز يې مدينه منوره و، مسلمانان پکې د مرکزي رول څښتنان وو، په مدينې منورې کې د اوسيدونکو يهودو درې لويې قبيلې وې: بني‌قينقاع، بني‌النضير او بني‌القريظه چې پيغمبرﷺ د ژمنو ماتولو له امله ځوک په مرګ محکوم کړل او ځوک يې له وطن څخه وشړل.

**د تدريس طريقې :** توضيحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب

**درسي مرستندويه توکي :** درسي کتاب، د سيرت او تاريخ کتابونه، تخته او تباشير.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده‌کوونکي فعاليت |
|---|---|---|
| ٥ دقيقې | **مقدمه:** ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو له سلام او احوال پوښتنې وروسته ټولګی منظم کوي، حاضري اخلي، د زده‌کوونکو له ستونزو ځان خبروي، د ادارې په مرسته د هغو د حل لارې برابروي او د امکان په صورت کې کورنۍ دنده او نظافت ګوري.<br>نوي لوست ته د زده‌کوونکو د هڅونې لپاره د پخواني لوست پوښتنه کوي د سم ځواب په اورېدلو د نوي لوست سرليک پر تخته ليکي او نوی لوست پيل کوي. | زده‌کوونکي بايد د ښوونکي له راتلو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي په ډير درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعليکم السلام ووايي دهغه څخه دې مننه وکړي |
| ٢٥ دقيقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرليکونه پر تخته ليکي ، بيا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطلب او مفهوم په ساده او لنډ عبارت سره داسې تشريح کوي چې د هرې درجې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>١- له يهودي، قبيلو سره د پيغمبر عليه السلام تړون.<br>ښوونکی د لوست له مطلب پورې اړوندې پوښتنې کوي تر څو زده‌کوونکي له ځان سره په لوست کې شريک وساتي او ځوابونه يې | زده‌کوونکي دلوست متن په ورو لولي<br>زده کوونکې دې خپلو کتابونو ته ځير شي.<br>د ښوونکي تشريح ته دې متوجه شي<br>- زده‌کوونکي دلوست دستونزو دحل لپاره هڅه کوي ، که چيرې کومې پايلې ته ونه رسيدل نو له |

| | | |
|---|---|---|
| | اصلاح کړي.<br>د لوست د موضوع په هکله که چیرې کومه ستونزه موجوده وي، د هغې د حل لپاره هڅه کوي<br>په لوست کې ورکړی شوی فعالیت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره شریکوي او په پای کې د لوست لنډیز وړاندې کوي. | ښوونکي څخه مرسته غواړي .<br><br>زده‌کوونکي دې ځوابونه ووایي او د لوست مهم ټکي دې په کتابچو کې ولیکي |
| ۵ دقیقې | **لنډیز:** د دې لپاره چې مسلمانان په مدینې منورې کې غښتلي شي او د ښمنۍ بل محاذ یې په وړاندې نه وي پرانستل شوی، پیغمبر علیه السلام د یهودو له قبیلو سره چې اکثره یې د مدینې منورې په داخل او شاوخوا سیمو کې اوسیدل د اسلام د اصلي روح په ښودلو سره چې دا دین د مسالمت او مصالحت دین دی، تړونونه لاس لیک کړل او تر څو چې دغه تړونونه د یهودو لخوا مات نشول، پیغمبر علیه السلام او اصحاب رضي الله عنهم یې ورته ژمن پاتې شول . | - زده‌کوونکي باید دلوست لنډیز ته غوږونیسي |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>ښوونکی دې په شفاهي او یا کتبي ډول زده‌کوونکي وارزوي د لوست پر مطالبو دې د زده‌کوونکو له پوهېدلو څخه ځان ډاډمن کړي. | ـ زده‌کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه لازم هدایات ورکړي. | ـ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

## **پنځم لوست** :

**سرلیک:** **د مسلمانانو پر ضد د قریشو دسیسې**

**وخت:** **یودرسي ساعت (٤٥ دقیقې)**

**موخې : زده‌کوونکي باید:**

١. د عبدالله بن اُبی بن سلول په نوم د قریشو د مشرکینو دخط لیږلو په هکله معلومات حاصل کړي .
٢. د پیغمبرﷺ سره د جنگ لپاره د عبدالله له تیاریانو څخه خبرشي.
٣. د مشرکینو په دښمنۍ پوه شي او د هغوی له دوستۍ څخه ډډه وکړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات :**

عبدالله ابن ابی ابن سلول د خزرج قبیلې له مشرانو څخه وو، په همدې شپو ورځو کې چې پیغمبرﷺ مدینې منورې ته هجرت کاوه د خزرج خلکو ده ته د مشرۍ تاج پر سر ور ایښوده خو چې کله پیغمبر صلی الله علیه وسلم راغی نو د ده خبره پاتې شوه. له همدې امله یې عقده واخیسته او د نفاق لاره یې غوره کړه. دده د نفاق غټې نښې درې ځایه ښکاره شوي دي: ١- د احد په غزا کې. ٢- د مریسع او مصطلق په غزا کې. ٣- د اِفک په موضوع کې او بله یې په دې وینا کې چې که موږ له بنې مصطلق نه مدینې ته ستانه شو نو ضرور به د عزت خاوند (چې ځان یې ښودلو) د ذلت خاوند (چې پیغمبرﷺ یې ښودلو) وباسي. زید بن ارقمؓ دا خبره پیغمبرﷺ ته ورسوله، خو بیا عبدالله بن اُبی منکر شو. هماغه و چې وحې راغله او د زید بن ارقم خبره یې تأییده کړه.

**د تدریس طریقه :** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**درسي مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د سیرت او تاریخ کتابونه، تخته او تباشیر.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده‌کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| ٥ دقیقې | **مقدمه:** ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو لـه سـلام او احوال پوښـتنې څخه وروسته ټولګی منظم کوي، حاضري اخلي د زده‌کوونکو له ستونزو ځان خبروي، د ادارې په مرسته د هغو د حل لارې برابروي او د امکان په صورت کې کورنۍ دنده او نظافت ګوري. نوي لوست ته د زده‌کوونکو د هڅونې لپاره د پخواني لوست پوښتنه مطرحوي د صحیح ځواب په اورېدلو د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او نوی لوست پیل کوي. | زده‌کوونکي باید د ښوونکي له راتلو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي په ډېر درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم السلام ووایي او دهغه پوښتنو ته دې ځواب ورکړي . |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول :** ښوونکی لـه زده‌کوونکوڅخه غـواړي چې د لوسـت مـتن پـه ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تختـه لیکـي ، بیـا دلوسـت عبارت پـه څـو تنـو زده‌کوونکـو لـولي او هغـوی تـه لانـدې مطالـب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تـشریح کـوي چـې د هـرې درجې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱- د عبدالله بن ابي بن سلول په نامه د مشرکینو خط لیږل.<br>۲- د پیغمبر علیه السلام پر ضد جنګ ته د عبدالله تیاري.<br>ښوونکی د لوست د مطالبو پورې اړوندې پوښتنې کوي تر څو زده‌کوونکي د ځان سره په لوست کې شریك وساتي او ځوابونه یې اصلاح کړي.<br>د لوست د موضوع په هکلـه کـه چیـرې کومـه سـتونزه موجـوده وي د هغې د حل لپاره هڅه کوي<br>په لوست کې ورکړی شوی فعالیت په خپل ځای کـې لـه زده‌کوونکـو سره مطرحوي او په پای کې د لوست لنډیز وړاندې کوي. | زده‌کوونکي دلوست متن په ورو لولي<br>زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر شي.<br>د ښوونکي تشریح ته دې متوجه شي<br>- زده‌کوونکي دلوست دستونزو دحـل لپـاره هڅـه کـوي ، کـه چیـري کـومي پایلې ته ونه رسیدل، بیا به له ښـوونکي څخه مرسته غواړي.<br>زده‌کوونکي دې ځوابونه ووایي او د لوست مهم ټکي دې په کتابچو کې ولیکي |
| ۵ دقیقې | **لنډیز:** د مکې مشرکینو د اسلام د ستر داعي حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او د هغه د سرښندونکو پلویانو شتون نه یوازې په مکه کې بلکې په بل هر ځای کې نشو زغملای . همدا وه چې د مدینې منورې تر ټولو لوی منافق عبد الله بن ابی بن سلول ته یې خط ولیږه او ورڅخه ویې غوښتل چې دغه خلك له مدینې څخه وباسي او د تل لپاره د اسلام د دعوت غږ ټپ کړي، خو پیغمبر علیه السلام د الله تعالی په مستقیمه لارښوونه او په خپل پیغمبرانه ابتکار وکولی شول چې نه یوازې دا چې مدینه منوره یې د اسلام مرکز وګرځاوه بلکې اسلام یې په ټوله عربي نړۍ کې خپور کړ او د اسلام دښمنان یې چې په سر کې یې د مکې مشرکان وو د تل لپاره نا هیلې کړل. | - زده‌کوونکي باید دلوست لنډیزته غوږونیسي |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>ښوونکی دې زده‌کوونکي په شفاهي او یا کتبي ډول وارزوي، او په لوست باندې دې د زده‌کوونکو له پوهیدلو ځان ډاډمن کړي. | ـزده‌کـــوونکي پوښـــتنوته ځوابونـــه ورکوي. |
| **کورنۍ دنده:** ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه لازم هدایات ورکړي، او بیا دې د زده‌کوونکو له مقالو څخه یوه مقاله چې له نورو ښه او جالبه وي د ادارې په مشوره د ښوونځي په دیوالي مجله کې نصب کړي. | | ــ زده‌کـوونکي دې کـورنۍ دنـده پـه کورونوکې ترسره کړي. |

## **شپږم لوست**:

**سرلیک: د بدر غزا**

**وخت: یودرسي ساعت (٤٥ دقیقې)**

**موخې : زده‌کوونکي باید :**

١. د دې تاریخي غزوې لامل وپېژني، او په هکله یې له مجاهدینو سره د پیغمبرﷺ له مشورې خبرشي .
٢. د ابو جهل په شمول د اویا تنو مشرکانو په مرگ او د کفارو په قطعي ماتې وپوهیږي .
٣. وپوهیږي چې الله تعالی د حق پلویانو ته د دښمن په مقابل کې بری ورکوي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات :**

ابي سفیانؓ : د ابي سفیان (صخر) دپلار نوم حرب د نیکه نوم یې امیه عبدالشمس قریشي و، د شرک په وخت کې له ابوجهل څخه وروسته د مشرکینو قاید و. د ام المومنین ام حبیبه رضي الله تعالی عنها پلار و.

**اخنس بن شریق:** چې کله مدینې منورې ته راغی د اسلام اظهار یې وکړ، رسولﷺ ډېر خوشحاله شو خو چې کله له مدینې څخه ووت نو د مسلمانانو کښتونو ته یې اور واچاوه او اوښان یې ورته مړه کړل نو الله تعالی یې په شان کې دا آیت نازل کړ(ومن الناس من یعجبك قوله في الحیوةِ الدنیا .... )

اخنس او ابوجهل چې دواړه د پیغمبرﷺ سر سخته دښمنان وو، ابوجهل ته وویل : اوس خو زه او ته یوازې یو. ووایه چې محمد کاذب دی او که صادق ؟ ابوجهل ورته وویل: محمد ریښتینی دی هیڅ کله یې دروغ ندي ویلي .

همدا راز له ابوسفیان څخه هر قل د پیغمبرﷺ په هکله پوښتنه وکړه آیا تاسې دی د نبوت له دعوی مخکې په دروغو متهم کړی و هغه په ځواب کې ورته وویل چې نه هغه دروغ ندي ویلي.

**مقداد بن عمرو:** د اسود بن عبد یغوث تر سرپرستۍ لاندې و او په ابو معبد یې شهرت درلود . د بدر په ورځ چې مسلمانانو یوازې دوه فارس(په آس سپاره) مجاهدین درلودل یو یې دی و.

**سعد بن معاذؓ:** د بني اشهل قبیلې مشر و د ده له اسلام راوړلو سره یې ټولې قبیلې اسلام راوړ پیغمبرﷺ ته تر ټولو انصارو د اعتماد او باور وړ شخصیت و. د بدر په ورځ یې د پیغمبرﷺ د حفاظت مسؤولیت پر غاړه درلود د بني قریظه یهودو د ځان لپاره حکم تعیین کړی و او بیا د همده په حکم سره دیهودو ټول نارینه مړه ښځې یې بندیانې او مال یې تقسیم شو.

**حباب** بن المنذر: بدري و او خورا ښه مشاور و. د بدر په ورځ کې هم د مجاهدینو د محاذ نیولو د ځای په هکله نبيﷺ د ده مشوره خوښه کړه د ده رایې په جاهلیت کې هم مشهورې وې.

**عبیده بن الحارث:** د پیغمبرﷺ د تره زوی و په همدې غزوه کې ټپي او بیا له همدې ټپ څخه شهید شو.

**هغه دوه زلمیان چې ابوجهل یې وواژه:** معاذ بن عمرو و چې یوه پښه یې ورته پرې کړه او بل معوذ بن عفراء و چې له حرکت څخه یې وغورځاوه او بیا عبد الله بن مسعودؓ ورته په څټ خپله پښه کیښوده او د څه بحث څخه وروسته یې وواژه.

**د تدریس طریقې :** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**درسي مرستندویه توکي :** درسي کتاب، د سیرت او تاریخ کتابونه، تخته او تباشیر.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکي فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:** ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو، له سلام او احوال پوښتنې څخه وروسته ټولګی منظم کوي، حاضري اخلي د زده کوونکو له ستونزو څان خبروي د ادارې په مرسته د هغو د حل لارې برابروي او د امکان په صورت کې کورنۍ دنده او نظافت ګوري. نوي لوست ته د زده کوونکو د هڅونې لپاره پوښتنه کوي وایي: څوک د بدر د غزا لامل بیانولی شي؟ د سم ځواب په اوریدلو د لوست سرلیک پر تخته لیکي او لوست پیل کوي. | زده کوونکي باید د ښوونکي له راتلو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي په ډیر درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم السلام ووایي او دهغه پوښتنو ته دې ځواب ورکړي . |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي ، بیا دلوست عبارت په څو تنو زده کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي چې د هرې درجې زده کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱- د بدر د غزا په هکله له مجاهدینو سره د پیغمبر علیه السلام مشوره.<br>۲- د ابوجهل وژل کیدل او د مشرکینو ماتې.<br>ښوونکی د لوست په مطالبو پورې اړوندې پوښتنې کوي تر څو زده کوونکي له څان سره په لوست کې شریک وساتي او ځوابونه یې سم کړي.<br>د لوست د موضوع په هکله که چیرې کومه ستونزه موجوده وي، د هغې د حل لپاره هڅه کوي<br>په لوست کې ورکړی شوی فعالیت په خپل ځای کې له زده کوونکو سره شریکوي او په پای کې د لوست لنډیز وړاندې کوي. | زده کوونکي دلوست متن په ورو لولي<br>زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر شي.<br>د ښوونکي تشریح ته دې متوجه شي<br>- زده کوونکي دلوست دستونزو دحل لپاره هڅه کوي ، که چیرې کومې پایلې ته ونه رسیدل بیا له ښوونکي څخه مرسته غواړي<br>زده کوونکي دې ځوابونه ووایي او د لوست مهم ټکي دې په کتابچو کې ولیکي |
| ۵ دقیقې | **لنډیز:** په دې غزا کې چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم یې اصلاً په فکر کې نه و او دا یې انګیرله چې موږ به د قافلې مخه ونیسو او له قافلې سره خو څو په شمار کسان وي له هغوی څخه به د خپلو هغو مالونو بدل او عوض واخلو، چې مشرکانو له موږ څخه په مکه کې ستانه کړي دي، خو د الله تعالی اراده بیا دا وه چې د ۳۱۳ تش لاسو مسلمانانو په وسیله په هر ډول وسلو سمبال زرو تنو شاو خوا مشرکانو غرور د تل لپاره مات کړي او د حق پلویان په آینده کې | - زده کوونکي باید دلوست لنډیزته غوږونیسي |

| | | |
|---|---|---|
| | ډاډمن کړي هماغه و چې په دې غزا کې د ابو جهل په شمول د مشرکانو اویا تنه مشران له منځه لاړل اویا تنه نور یې بندیان ونیول شول څه یې چې له ځان سره درلودل مسلمانانو ته په غنیمت پاتې شول او دا غزوه د مشرکانو په قطعي ماتې او رسوایي باندې تمامه شوه . | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>ښوونکی دې زده‌کوونکي په شفاهي او یا کتبي ډول وارزوي، او پر لوست باندې دې د زده‌کوونکو پر پوهیدلو ځان ډاډمن کړي. | _زده‌کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| **کورنی دنده:** ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه لازم هدایات ورکړي، بیا دې د زده‌کوونکو له مقالو څخه یوه مقاله چې له نورو ښه او جالبه وي د ادارې په مشوره د ښوونځي په دیواري مجله کې نصب کړي. | | ـ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

## اووم لوست:

**سرليک:** **د احد غزا**

**وخت:** **يودرسي ساعت (۴۵ دقيقې)**

**موخې : زده‌کوونکي بايد :**

۱. د احد د غزا په اړه هر اړخيز معلومات ترلاسه کړي.
۲. پوه شي چې د مسلمانانو غزاګانو دفاعي او اصلاحي اړخ درلود.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات :**

**عبدالله بن جبير:** دنيکه نوم يې نعمان کنيه نوم يې ابي المنذر د اوس له قبيلې څخه و.

**طلحه بن ابي طلحه:** هغه څوک دی چې د بدر او احد په ورځ کې د مشرکانو د بيرغ اوچتوونکی و او بيا د حضرت زبير بن عوام رضي الله عنه له خوا ووژل شو.

**زبير بن عوام :** د عشره مبشره ؤ له جملې څخه و او د ابوبکرصديق رضي الله عنه په دعوت يې اسلام قبول کړ له لومړنيو مسلمانانو څخه دی د پيغمبر صلی الله علیه وسلم د عمه حضرت صفيه رضي الله عنها زوی او دهغه صلی الله عليه وسلم حواري دی.

**د تدريس طريقې :** توضيحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**درسي مرستندويه توکي:** درسي کتاب، د سيرت او تاريخ کتابونه، تخته او تباشير.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده‌کوونکي فعاليت |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **مقدمه:** ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو، له سلام او احوال پوښتنې څخه وروسته ټولګی منظم کوي، حاضري اخلي د زده‌کوونکو له ستونزو ځان خبروي د ادارې په مرسته د هغو د حل لارې برابروي او د امکان په صورت کې کورنی دنده او نظافت ګوري. نوي لوست ته د زده‌کوونکو د هڅونې او د پخواني لوست د ارزونې لپاره پوښتنه کوي، وايي: دبدر دغزا پايله څرنګه وه ؟ د سم ځواب په اورېدلو د نوي لوست سرليک پر تخته ليکي او نوی لوست پيل کوي. | زده‌کوونکي بايد د ښوونکي له راتلو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي په ډېر درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعليکم السلام ووايي او دهغه پوښتنو ته دې ځواب ورکړي . |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرليکونه پر تخته ليکي ، بيا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهيم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشريح کوي چې د هرې کچې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱- د احد د غزا سبب څه و. | زده‌کوونکي دلوست متن په ورو لولي<br><br>زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځير شي.<br>د ښوونکي تشريح ته دې متوجه شي |

| وخت | فعالیتونه | یادښتونه |
| --- | --- | --- |
| | ۲- په مدینه منوره کې د شورى جوړېدل .<br>۳- د ځینو غیشو ویشتونکو تیروتنې.<br>ښوونکی د لوست په مطالبو پورې اړونـدې پوښـتنې کـوي تـر څو زده کوونکي له ځان سره په لوست کې شـریک وسـاتي او ځوابونه يې سم کړي.<br>د لوست د موضوع په هکله که چیرې کومه ستونزه موجوده وي د هغې د حل لپاره هڅه کوي<br>پـه لوسـت کـې ورکـړى شـوى فعالیـت پـه خپـل ځـاى کـې لـه زده کوونکـو سـره شـریکوي او پـه پـاى کـې د لوسـت لنـډیز وړاندې کوي. | - زده کوونکي دلوسـت دسـتونزو دحـل لپـاره هڅـه کـوي ، کـه چیـرې کـومې پایلې ته ونه رسیدل بیا بـه لـه ښـوونکي څخه مرسته غواړي.<br><br>زده کوونکي دې ځوابونه ووایي او د لوست مهم ټکي دې په کتابچو کې ولیکي |
| ۵ دقیقې | **لنډیز:** دویمه غزا چې د مشرکانو او پیغمبر علیه السلام تر منځ پیښه شوه د اُحد غزا ده، پدې غزا کې په لومړي پړاو کې صحابه کرامو مشرکانو ته سخته ماتي ورکړه، صحابه کرام وایي: د مشرکانو سره راغلې ښځې د هندې په شمول تښتیدلې خو له بده مرغه کله چې پر جبل رُمات باندې گمارل شوو غشي ویشتونکو مجاهدینو اجتهادي تیروتنه وکړه او د غنیمت راټولولو په تکل کې شول د مشرکانو سپرو ډلې وخت غنیمت ولید په جبل رُمات ور وختل او هلته پاتې دولس تنه صحابه کرام يې شهیدان کړل او د مجاهدینو تر شا چې د غنیمت پر راټولولو بوخت وو راتاو شول، ناڅاپه د جنگ صحنه بدله شوه تښتیدلي مشرکان هم راوگرځیدل اویا تنه مسلمانان د سید الشهداء حضرت حمزة رضي الله عنه په شمول شهیدان شول ، پیغمبر علیه السلام زخمي شو غاښونه يې شهیدان شول که څه هم مسلمانان په وړو وړو ډلگیو تقسیم او یو له بل څخه لري پاتي شول خو بیا هم د الله ریښتني پیغمبر او ورسره په شمار څو کسانو د خپل بې ساري مقاومت په ښودلو د مشرکانو حوصلې ورماتي کړي او د جنگ په ډگر کې ثابت قدمه پاتې شول ، مشرکانو چې و نشو کولاى – د جنگ پر میدان کنترول پیدا کړي، خپل تم ځاى ته په تللو يې میدان پریښود او بې لدې چې د جنگ وروستۍ نتیجې ته ورسیږي لاړل او د مسلمانانو لخوا تر ډیره ځایه تعقیب کړاى شول . | - زده کوونکي باید دلوست لنډیزته غوږ ونیسي |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>ښوونکی دې په شفاهي او یا کتبي ډول زده کوونکي وارزوي، په لوست دې د زده کوونکو پر پوهیدلو ځان ډاډمن کړي. | ــزده کـــوونکي پوښـــتنوته ځوابونـــه ورکوي. |
| **کورنۍ دنده:** ښوونکی دې زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه لازم هدایات ورکړي. | | ــ زده کـوونکي دې کـورنۍ دنـده پـه کورونوکې ترسره کړي. |

## لومړی لوست:

**عنوان:** کفالت

**پاڼه:** ۱۹-۲۲

**وخت:** یو درسي ساعت (٤٥ دقیقې)

**اهداف:** زده‌کوونکي باید:

**الف:** د کفالت تعریف، د مشروعیت دلائل، حکمت، رکن، ډولونه او اړوند اصطلاحات وپېژني.

**ب:** په کفالت پورې اړوندو مسایلو کې روا او ناروا وپېژني.

**ج:** د کفالت د عملي کولو په هکله مهارت حاصل کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱.** فقهاء کرامو کفاله د بیع څخه وروسته راوړې ده ځکه چې اکثره په بیعه کې پېښېږي، هغه داسې چې پلورونکی په اخېستونکي باوري نه وي، له دې امله ترې ضمانت غواړي، یا داسې چې مشتري په بائع اعتماد نه کوي ضمانت ته اړتیا پیداکېږي، لکه: په سلم کې.

**۲.** د کفالت الفاظ: د ځان کفالت په هغو الفاظو سمېږي چې د هغې نه ټول بدن مرادېږي لکه: سر، غاړه، روح او نور. یعنې که ووایي زه د فلاني د سر، غاړې او یا روح ضامن یم، دې ضمانت کوونکي دده د ټول ځان ضمانت وکړ.

**۳.** کفاله درېیم ډول هم لري چې هغه، د چا د ځان او مال دواړو ضمانت کولو څخه عبارت دی.

**٤.** د مال ضمانت کول په دوه صورتونو کې راتلای شي:

**الف:** داچې پور وړی بالکل برئ او خلاص کړي، یعنې د هغه نه یې مه غواړه زه یې درکوم، چې دې ته حواله وایي.

**ب:** داچې پور وړي ته براءت ورنکړي بلکې داسې ورته ووایي: که ده په ټاکلي وخت در نکړ، پور دې زه درکوم.

**۵.** د چا د ځان کفالت هم په دوه ډوله دی:

الف- موقت کفالت: داچې د یو چا څو ورځې ضمانت وکړي.

ب- آزاد کفالت: داچې د یو چا د حاضرولو په مطلقه توګه ضامن شي او کوم ټاکلی وخت پکې نه وي.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، سوال، ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشیر، کاغذ، او قلم.

د لوست لړۍ :

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | **سریزه:** ښاغلی ښوونکی چې کله ټولګي ته ننوزي لومړی به:<br>• سلام اچوي او حاضري اخلي.<br>• ټولګی تنظیموي او نظافت ګوري.<br>• د تېر کال لنډه ارزونه کوي، لکه:<br>▪ الف :پروسږکال مو په فقه کې کوم عنوانونه ویلي وو؟<br>▪ ب :فقه څه ته وایي؟<br>▪ ج :د فقهې مضمون د کلنۍ ازموینې یو سوال ووایئ؟<br>• نوي درس ته زده‌کوونکي برابروي، یعنې اوسنی عنوان ورته په لنډه او جالبه قصه وړاندې کوي، لکه:<br>- ګورئ ځینو ته د پروسږني کال د درس په هکله هیڅ معلومات نه وو، ولې؟<br>- سږکال به درس په څېر سره وایئ،<br>- هو! وایو، په دې هکله یو د بل ضامن کېږئ، هو: راځئ چې نن په ضامن او ضمانت وغږېږو، غوږ شئ. | د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایې.<br>زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ ږدي. |
| ۲۵ دقیقې | **درس وړاندې کول:**<br>-له بسم الله الرحمن الرحیم وروسته به:<br>• ښاغلی ښوونکی د نوي درس عنوان (کفالت) په تخته لیکي.<br>• زده‌کوونکو ته هدایت ورکوي چې په پټه له ځان سره کتاب مطالعه کړي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>• د موضوع (کفالت) جانبي عنوانونه هم په تخته لیکي.<br>• په کمزورو زده‌کوونکو د نومړي موضوع د یو یو پاراګراف عبارت په لوړ اوازلولي.<br>• زده‌کوونکوته وایې چې خپل په نښه شوي ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>• استاد هغه هم په تخته لیکي.<br>• ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو څخه پوښتي چې د (کفالت) په هکله مو د عبارت څخه څه زده کړل؟<br>• بیا خپل درس په ارام او کرارۍ سره شرحه کوي.<br>• د زده‌کوونکو څخه د فعالیتونو په هکله پوښتنه کوي.<br>• بیا د ستونزو په هکله ترې پوښتي.<br>په پای کې په ارام او ډاډ سره زده‌کوونکي ارزیابي کوي. | زده‌کوونکي د استاذ له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>له ځان سره کتاب مطالعه کوي.<br>په لوړ اواز کتاب له مخې وایي.<br>ستونزمن ځایونه ښوونکي ته په ګوته کوي.<br>د فعالیتونو ځواب وایي.<br>د استاذ په هدایت عمل کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| لس دقیقې | **ارزونه:**<br>**۱-** کفالت په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ.<br>**۲-** د کفالې رکن ووایاست.<br>**۳-** کفالت په څو ډوله دی؟ بیان یې کړئ.<br>**٤-** د کفالت اړوند اصطلاحات تعریف کړئ.<br>**۵-** خالیګاوې په مناسبو کلمو ډکې کړئ. | زده‌کوونکي ځواب وایي<br>۱- کفیل<br>۲- اصیل |
| پنځه دقیقې | **د درس لنډیز:**<br>- د یو چا د مال او ځان یا یوازې د ځان یا مال ضمانت کول کفالت بلل کیږي.<br>- کفالت په قرآن کریم، احادیثو او اجماع ثابت دی.<br>- کفالت ځانګړي شرطونه لري چې ځینې یې په صیغه، مکفول له، کفیل او نور یې په مدیون پورې تړاو لري.<br>- د کفالت احکام دائن او کفیل پورې تړاو لري. | زده‌کوونکي غوږ نیسي |
| | **کورنی کار:**<br>ښاغلی ښوونکی دې د زده‌کوونکو کتاب وګوري او د هغه له مخې دې زده‌کوونکو ته کورنی دنده ورکړي. | |

## دویم لوست:

**عنوان:** د کفالت پای

**پانه:** ۲۳-۲۵

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱- هغه حالات وپېژني چې کفالت پرې پای ته رسېږي.

۲- دا يې ذهن کې کېني چې په اسلام کې د ديني چارو ترڅنګ د ژوندنيزو چارو په اړوند هم ډېرې څرګندې لارښوونې او حکمونه بيان شويدي.

۳- د کفالت د پای حالات عملاً پلي کړای شي، او د کارونې ځايونه يې وپېژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**لومړی- ابراء:**

ابراء په لغت کې خلاصولو او لرې کولو ته وايي او د فقهاءو په اصطلاح کې د بل چا له ذمې څخه خپل حق ساقطول ابراء بلل کيږي، لکه د پوروړي د غاړې څخه د پور ورکوونکي له لوري د پور ساقطول.

**د ابراء ځايونه:** ابراء په لاندې درې ځايونو کې راتلای شي:

۱- ديون (پورونه)

۲- حقوق: لکه د کفالې او حوالې څخه ابراء، يا د ښځې له نفقې څخه ابراء.

د ابراء ډولونه: ابراء په دوه ډوله ده:

الف: عامه ابراء لکه: له هر حق څخه ابراء اګر که غير مالي هم وي.

ب: خاصه ابراء لکه له يو ټاکلي حق څخه ابراء.

د اشخاصو او زمانې له مخې د ابراء ډولونه:

۱- ابراء به د تېرو حقوقو څخه کيږي راتلونکي پکې نه شامليږي. چې پدې هکله د فقهې قاعده داسې ده:

**"البراء ة السابقة لا تعمل فى الدين اللاحق".**

۲- د ابراء سرايت بل چاته: لکه د بائع له لورې مشتري ته روپۍ کمول، که پلورل شوی مال ځمکه وي بيا ورڅخه شفيع هم ګټه اخېستلای شي، حال داچې د کمولو ابراء ده ته نه، بلکې مشتري ته شوې ده.

**د ابراء حکم:**

لومړی: کله چې ابراء له شرطونو سره سمه ترسره شي مبرأ منه حق له ابراء سره سم ساقطيږي.

دويم: صحيحه اجازه هغه اجازه ده چې په حالت د صحت عقل کې د مکلف وګړي له لورې صادره شي.

دریم: د بازار ضمانت پدې معنا چې د بانک چکونو په واسطه يو ټاکلی بانک د چا ضمانت وکړي.

**د تدريس طريقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تباشیر، تخته او نور.

**د لوست لړۍ :**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | **سریزه:**<br>– ښاغلی ښوونکی چې کله ټولګي ته ننوځي لومړی به:<br>● سلام واچوي بیا:<br>● ټولګی تنظیموي او ورپسې د تېر لوست لنډه ارزونه کوي، لکه:<br>▪ د پلار له غصې څخه د دربمګړي پواسطه په ذمه واری خلاصون څه شی دی؟<br>▪ کفالت څو ارکان لري؟<br>▪ په کوم آیت سره کفالت روا شوی دی؟<br>▪ نوي درس ته زده‌کوونکي برابرول، لکه:<br>–څوک چې د چا ذمه وار شو آیا دا به یې ټول عمر ضامن وي؟ که څنګه؟<br>–نو اوس مونږ هغه حالات لولو چې کفالت پرې پای ته رسیږي.<br>**درس وړاندې کول:**<br>–له بسم الله الرحمن الرحیم وروسته ښاغلی ښوونکی:<br>● پر تخته نېټه، ورځ او نوی عنوان (د کفالت پای) لیکي.<br>● زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې په پټه خوله له ځان سره کتاب ولولي.اواستاذ دالاندې شیان پر تخته لیکي:<br>– د کفالت بالمال د پای حالات<br>– د کفالت بالنفس د پای حالات<br>– له اصیل څخه د کفیل له له لوري د ورکړل شوي مال د غوښتلو شرطونه<br>– په کفالت د اجورې اخېستلو حکم<br>– مهم تجارتي کفالتونه<br>● پر زده‌کوونکو یو یو پاراګراف عبارت لولي.<br>د زده‌کوونکو څخه د لیکل شوو عناوینو او نوي لوست په هکله پوښتنې کوي. | د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي.<br>غوږ نیسي ، له استاد سره په لوست کې ګډون کوي<br>د ښوونکی له هدایت سره سم عمل کوي.<br>ستونزمن ځایونه په نښه کوي. غوږ نیسي او پوښتنې ځوابوي. |

| ۲۵ دقيقې | • په ارام او کرارۍ سره لوست شرحه کوي.<br>• پر زده کوونکو فعاليتونه اجرا کوي.<br>• د ستونزو په هکله ترې پوښتنه کوي او په پای کې لوست ارزوي. | |
|---|---|---|
| لس دقيقې | **ارزونه:**<br>۱- په کومو حالاتو کفالت پای ته رسيږي؟<br>۲- آيا کفيل له اصيل څخه غوښتنه کولای شي؟<br>۳- په اوسني عصر کې د کفالت مهم ډولونه کوم دي؟<br>٤- ضمان الدرک څه ته وايي؟<br>۵- خالي ځايونه په مناسبو کلمو ډک کړئ. | په ارام او کرارۍ سره ځواب وايي<br>۱- مکفول عنه<br>۲- مشتری ته د مبيعې او پلورونکي ته د پيسو ضمانت ورکړي |
| پنځه دقيقې | **د درس لنډيز:**<br>- کفالت بالمال په دوو لارو سرته رسيږي:<br>الف: غوښتونکي ته د مال په ورکولو سره.<br>ب: په ابراء يا صلح کولو.<br>- کفالت بالنفس په درې شيانو سره پای ته رسيږي:<br>الف: غوښتونکي ته د سړي په سپارلو سره<br>ب: په ابراء.<br>ج: د مکفول عنه په مړينې سره.<br>-په کفالت باندې اجوره اخيستل روا دي.<br>-مهم تجارتي کفالتونه:<br>-الف:د درک ضمانت.<br>ب: د بازار ضمانت.<br>ج: د وزن او ګز ضمانت. | غوږ نيسي ،په غور اورې او نتيجه اخلي. |
| | **کورنی دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی دې د زده‌کوونکو کتاب ته د کتنې وروسته کورنی دنده ورکړي. | |

## دریم لوست:

**عنوان:** حواله

**پاڼه:** ۲۶-۲۸)

**وخت:** یو درسي ساعت (٤٥ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱- د حوالې تعریف، د روا والي دلیل، حکم، اړوند اصطلاحات، رکن، شرائط او احکام وپېژني.

۲- حواله عملاً تمثیل کړای شي او د اړتیا پر وخت ترې ګټه واخلي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱- د تېر لوست سره تړاو:

فقهاء کرامو حواله وروسته له کفالې څخه راوړې، ځکه چې په دواړو کې د اصلی سړي له خوا ذمه واري ده خو په حوالې سره اصیل سوچه بری کیږي او په کفاله کې د پور خاوند خوښه ده چې له اصیل څخه خپل حق غواړي او که له کفیل څخه.

۲- اعیان: د عین جمع ده او عین معین او مشخص شي ته ویل کیږي، لکه: کور، چوکی، او نور.

۳- د حوالې ډولونه: په عام ډول حواله په دوه ډوله ده:

الف- مقیده حواله: هغه حواله ده چې په پور، امانت او یا غصب باندې یې مقیده کړي.

ب- مطلقه حواله: هغه حواله ده چې په پورتنیو شیانو پورې مقیده نشي.

د مقیدې حوالې ډولونه: مقیده حواله لاندې درې ډولونه لري:

۱- د حوالې مقید کول په خاص پور پورې، یعنې زما در باندې پور، احمد ته ورکړه.

۲- د حوالې مقید کول په امانت عین پورې، لکه: زما هغه له تاسره امانت مال محمود ته ورکړه.

۳- د حوالې مقید کول په مضمون (تاوان لرونکي) عین پورې، لکه: هغه زما څخه غصب شوی شی زبیر ته ورکړه.

**د مطلقې حوالې ډولونه:**

۱- نقده حواله، لکه: اوس لاړ شه سمدستي یې ترې واخله.

۲- مؤجله حواله، لکه: یوه میاشت وروسته یې ترې واخله.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشیر او نور.

د لوست لړۍ :

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| پنځه دقیقې | **سریزه:** ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو وروسته:<br>• سلام اچوي، حاضري اخلي او ټولګي برابر وي.<br>• د تېر لوست لنډه ارزونه په لاندې ډول کوي:<br>▪ تېره ورځ مو کوم عنوان ویلی و؟<br>▪ کفالت په کومو شیانو پای مومي؟<br>▪ د تجارتي کفالتونو نومونه واخلئ.<br>▪ نوي لوست ته زده‌کوونکي برابر وي، لکه:<br>- کفالت څه شی دی ؟<br>- د اصیل د ځان او مال ضمانت.<br>- نن به دا ولولو چې اصیل څنګه ځان له مال څخه خلاصوي؟<br>- او دا خلاصون ځینې وخت په حوالې راځي، راځئ چې دا وپېژنو چې حواله څه شی دی؟ | د استاذ پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>د ښوونکي په هدایت عمل کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **درس وړاندې کول:**<br>–له بسم الله الرحمن الرحیم وروسته ښاغلی ښوونکی:<br>• د لوست عنوان (حواله)، نېټه، ورځ او د کتاب پاڼه پر تخته لیکي.<br>• په حواله لنډه رڼا اچوي.<br>• په پټه خوله په زده‌کوونکو د کتاب عبارت لولي.<br>• زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې سخت ځایونه په نښه کړي، په دې وخت کې دا لاندې څنډېز عنوانونه پر تخته لیکي، لکه: د حوالې تعریف، روا والي دلیل، د حوالې اړوند اصطلاحات، شرطونه او د حوالې احکام.<br>• په زده‌کوونکو یوه یوه کرښه عبارت لولي.<br>• له زده‌کوونکو څخه د ځینو عنوانونو په هکله، لکه د حوالې احکامو پوښتنه کوي.<br>• هڅووني پلې کوي.<br>• په آرامۍ او ډاډېنه سره لوست اولیکل شوي عنوانونه شرحه کوي، له زده‌کوونکو سره د لوست په هکله سوال او ځواب کوي، بیا په پای کې خپل لوستل شوی لوست ارزیابي کوي. | غوږ نیسي.<br>په چوپه خوله عبارت لولي.<br><br>د ښوونکي په هدایت عمل کوي.<br>ښوونکي سره په درس کې برخه اخلي.<br>په غور اوري اوغوږ نیسي. |
| لس دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- حواله لغتاً او اصطلاحاً څه معنا لري؟<br>۲- د حوالې د روا والي دلائل کوم دي؟ په لنډ ډول يې ووایاست. | ځواب وايي.<br><br>۱- پوروړنه |

| | ٣- د حوالې رکن کوم دی؟<br>٤- د حواله کوونکي شرطونه په لنډ ډول بیان کړئ.<br>٥- د حوالې اخېستونکي شرطونه کوم دي؟<br>٦- خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ. | ٢- قطعي والی دخالیګا د ډکولو په هکله په خپل منځ کې خبر ي اترې کوي |
|---|---|---|
| لس دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>- حواله د مدیون له غاړې څخه د ذمي اخېستونکي غاړې ته د غوښتنې نقلولو ته وایي.<br>- حواله په حدیث او اجماع سره ثابته ده.<br>- حواله په پورونو کې روا ده، خو په اعیانو کې جواز نلري.<br>- د حوالې پورې تړلي اصطلاحات: محیل، محال، محال علیه، او محال به دي.<br>- د حوالې رکن ایجاب او قبول دي.<br>- د حوالې احکام:<br>الف: د حواله کوونکي خلاصېدل.<br>ب: د حق د خاوند د غوښتنې ثابتېدل. | غوږ نیسي او ژوره پاملرنه کوي. |
| | **کورنی دنده:**<br>د زده‌کوونکو یا د زده‌کړې له کتاب څخه دې ښوونکی صاحب زده‌کوونکي په کورنی دنده وګماری. | |

## خلورم لوست:

**عنوان:** حواله (۲)
**پاڼه:** ۲۹-۳۱
**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)
**موخې:** زده‌کوونکي باید:
۱- د حوالې د پای حالات، په محيل باندې د محال علیه رجوع او دحوالې اړوند مسائل وپېژني.
۲- د حوالې د پای حالات عملاً تمثیل او پلي کړای شي.
**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**
۱- فسخه:
فسخه په لغت کې نقص او بېلوالي ته وايي، خو د فقهاء وو په اصطلاح کې د تړون ماتولو او د هغه د حکم له منځه وړل فسخه بلل کېږي.
په فسخه پورې تړلي الفاظ:
انفساخ، خلع، طلاق، ابطال او فساد.
انفساخ: د عقد د /ماتولو او له مینځه وړلو په معنا دی.
خلع: د ښځې په غوښتنه د مالي بدل په مقابل کې چې سړي ته يې ورکوي، د نکاح له منځه وړل خلع ده.
طلاق: د ثابتې نکاح پورته کول طلاق دی.
ابطال: د رکن یا محل د اختلال له مخې د عقد له منځه وړل ابطال دی، لکه د لېوني بیع او یا د خنزیر پلورل، ځکه د لېوني ایجاب او قبول اعتبار نلري، نو د بیعې په رکن کې خلل دی او خنزير مال نه دی، نو د بيعې په محل کې خلل راغلی دی.
فساد: د عارضي وصف له امله په عقد کې خلل فساد بلل کېږي، لکه په بیع کې داسې شرط چې د هغې د مقتضیاتو په خلاف وي، کور مې درباندې وپلوره خو یو کال به پکې اوسېږم. داسې شرط عقد فاسد ګرځوي.
۲- افلاس: فلس د مال نشتوالي ته وايي او په عرف کې مفلس هغه چاته ویل کېږي چې مال ونلري، خو د فقهاء و په اصطلاح کې هغه څوک مفلس بلل کېږي چې مال يې پورونو ته بسیا نه کوي، یا يې پورونه له مال څخه زیات وي.
**د تدریس طریقه:**
تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.
**درسي مواد:**
تخته، تباشیر، کاغذ، قلم او نور.
**درسي لړۍ :**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| پنځه دقيقې | **سریزه:** ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو وروسته:<br>• سلام اچوي او ټولګی تنظیموي، حاضري اخلي او کورنی کار ګوري.<br>• د تېر لوست ارزونه کوي، لکه:<br>▪ په محيل باندې څه وخت رجوع کېږي؟<br>▪ نوي لوست ته زده‌کوونکي برابروي، لکه: | زده‌کوونکي ځواب ورکوي.<br>د ښوونکي پوښتنې ځوابوي او په غور يې اوري. |

| | | |
|---|---|---|
| | ګورئ زده‌کوونکو په حواله کې یو چا د بل چا په ځای روپۍ ورکولې، خو په نني درس کې یو څوک د بل چا پرځای د هغه لپاره کار ترسره کوي او دې ته مونږ وکالت وایو.<br>راځئ وګورو چې نور څه شته او که یوازې همداخبره ده. | |
| ۲۵ دقیقې | **لوست وړاندې کول:**<br>- د بسم الله الرحمن الرحیم وروسته ښاغلی ښوونکی:<br>● نوی عنوان، نېټه اودکتاب پاڼه پر تخته لیکي.<br>● د وکالت په هکله یو ژوندی مثال ورکوي.<br>● زده‌کوونکو ته هدایت ورکوي چې له ځان سره په پټه خوله د کتاب عبارت ووایي او په دې لړ کې به دا لاندې عنوانونه پر تخته لیکي:<br>- د وکالت تعریف<br>- د وکالت د روا والي دلیل<br>- د وکالت حکم.<br>- د وکالت حکمت.<br>- د وکالت ارکان<br>- د وکالت اړوند اصطلاحات<br>- د وکالت شرطونه<br>● په زده‌کوونکو باندې په لوړ اواز یو یو پاراګراف عبارت وایي.<br>● له زده‌کوونکو څخه د عبارت لنډ مطلب پوښتنه کوي.<br>● بیا لوست شرحه کوي.<br>● د زده‌کوونکو درسي ستونزې حل کوي.<br>● د ستونزو په هکله پوښتنه کوي او هڅونې پلې کوي.<br>● په پای کې لوست ارزوي. | غوږ نیسي.<br>د استاذ په هدایت عمل کوي.<br>په چوپه خوله مطالعه کوي.<br>په غور د استاذ پوښتنې ځوابوي.<br>په لوړ اواز عبارت لولي. |
| لس دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- وکالت تعریف کړئ.<br>۲- د وکیل، موکل او له محل عقد څخه موخه څه ده؟<br>۳- د وکیل شرطونه کوم دي؟<br>٤- د عقد د ځای شرطونه بیان کړئ.<br>٥- د خصومت د وکیل په اړوند احکام بیان کړئ.<br>٦- د خالیګاوو ډکول. | د استاد پوښتنو ته ځواب وایې.<br>۱- عاقل وي<br>۲- مالك<br>۳- قاضي، موکل |

| | | |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>- په روا او معلوم تصرف کې د ځان پر ځای د بل چا ټاکل وکالت بلل کیږي.<br>- وکالت په قرآن، حدیث، او اجماع سره ثابت دی.<br>- وکالت مباح عمل دی.<br>- د وکالت رکن ایجاب او قبول دی.<br>- د وکالت اړوند اصطلاحات وکیل، موکل او موکل به دي.<br>- د وکیل شرطونه څلور دي.<br>- موکل دوه شرطونه لري.<br>- موکل به درې شرطونه لري.<br>- وکالت ځانګړي احکام لري، چې ځینې یې د خصومت وکیل، ځینې یې د پلورنې او اخیستنې وکیل او نور یې د پور غوښتنې وکیل سره تړاو لري. | په غور اوري او غور نیسي. |
| | **کورنی کار:** درسي کتاب ته په کتلو سره دې استاد کورنی دنده ورکړي. | |

## **پنځم لوست**:

**عنوان:** وکالت

**پانه:** ۳۲-۳۵

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱- د وکالت تعریف، د روا والي دلیل، حکم، ارکان، شرطونه او احکام وپېژني.

۲- د کفالت په مختلفو صورتونو کې روا او ناروا وپېژني.

۳- زده‌کوونکي باید وکالت او د وکالت احکام عملاً تمثیل کړای شي، د ژوند په چارو کې ترې ګټه واخېستلای شي او د اړتیاوو ځایونه یې پیداکړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱- د وکالت معنا حفظ او ساتنه ده، لکه: په دې آیت کې چې الله (ﷻ) فرمایي: **"حسبنا الله و نعم الوکیل" (ال عمران(۱۷۲) آیت.**

۲- د پلورنې او اخېستنې وکالت هم په دوه ډوله دی:

الف- عام وکالت، لکه: موکل خپل وکیل ته وایې: چې څه شی دې خوښېده ماته یې اخله.

ب- خاص وکالت، لکه چې موکل خپل وکیل ته ووایي: ماته یوه جوړه جامې واخله...

۳- هغه شیان چې وکالت پکې راتلای شي، عبارت دي له:

لومړی: عقود، لکه: اخېستنه او پېرودنه.

دویم: مالي عبادات، لکه: زکات، صدقات، نذرونه او کفارات.

درېیم: طلاق، رجعت او خلع.

٤- هغه شیان چې اتفاقاً وکالت پکې نه صحیح کېږي:

الف- شهادت او ګواهي، یعنې یو شاهد د بل په ځای ګواهي نشي ورکولای، بلکې هر یو به په خپله، خپله شاهدي ورکوي.

ب- سوګندونه، څکه چې دا د شخص په ذات پورې تړاو لري، همدا راز په لعان، ایلاء او قسامت کې هم نه واقع کېږي.

ج- ګناهونه، یعنې په جنایاتو کې یو څوک د خپل ځان په ځای بل څوک نشي وکیل کولای.

د- بدني عبادتونه، لکه: لمونځ، روژه، اودس...

**د لوست طریقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشیر، قلم، کتابچه، کاغذ او نور.

د لوست لړۍ :

| د زده‌کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| زده‌کوونکي ځواب ورکوي،د ښوونکي په لارښوونو عمل کوي، پوښتنې یې ځوابوي.<br><br>په لوست کې ګډون کوي. | **سریزه:** ښاغلی ښوونکی چې کله ټولګي ته ننوځي:<br>• سلام اچوي او ټولګی تنظیموي.<br>• حاضري اخلي او کورنی کار ګوري.<br>• د تېر لوست ارزونه کوي، لکه:<br>• د وکالت اړوند اصطلاحات کوم دي؟<br>• د وکالت رکن څه شی دی؟<br>• نوي لوست ته زده‌کوونکي برابروي، لکه:<br>- هغه کوم آیت دی چې وکالت پرې روا شوی دی.<br>- د وکالت ارکان وواياست.<br>- که یو تن ډېر وکیلان ونیسي آیا دا کولای شي او که نه؟<br>- نن دا مسئله روښانه کوو. | پنځه دقیقې |
| د استاذ په لارښوونو عمل کوي.<br><br>په لوړ اواز عبارت لولي،غوږ نیسي،په مینه اود زړه په غوږونو لوست اوري.<br>له ښوونکي سره په لوست کې ګډون کوي.<br>خپلې پوښتنې او ستونزې استاذ ته وايي او د استاذ پوښتنې ځوابوي. | **د درس وړاندې کول:** د بسم الله الرحمن الرحیم له ویلو وروسته ښاغلی ښوونکی:<br>• لاندې معلومات پر تخته لیکي:<br>- د لوست عنوان، ورځ، نېټه او د کتاب مخ.<br>- د وکیلانو ډېروالی او ورپورې تړلي احکام:<br>- د وکالت صفت:<br>- د وکالت پای:<br>- د وکالت پورې تړلي مسائل:<br>- د اخېستلو د وکالت ډولونه:<br>• پر کمزورو زده‌کوونکو یو یو پاراګراف لولي.<br>• له زده‌کوونکو څخه عامه پوښتنه کوي چې آیا د عبارت څخه مو څه مطلب واخېست که څنګه؟ څوک یې ویلای شي؟<br>• پر تخته لیکل شوي عنوانونه تشریح کوي او زده‌کوونکي ورباندې پوهوي.<br>• زده کونکو څخه د هڅونو په هکله پوښتنه کوي.<br>• له زده‌کوونکو څخه د ستونزو پوښتنه کوي،که یې لرلې ورته یې حل کوي.<br>• په پای کې په ارام او سکون سره نوی لوست ارزیابي کړي. | ۲۵ دقیقې |

| لس دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- آیا یو تن کولای شي چې څو تنه وکیلان ونیسي؟<br>۲- په اجورې سره د وکالت یو مثال ووایاست.<br>۳- د وکالت د پای موارد ووایاست.<br>٤- لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ. | پوښتنې ځوابوي.<br>۱- روا، فسخه<br>۲- د وکیل خبرول، دویم داچې د چا حق به ورپورې تړلی نه وي. |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | **د لوست لنډيز:**<br>- یو تن کولای شي چې د ځان لپاره ډېر وکیلان ونیسي.<br>- که له یو تن څخه ډېر کسان وکالت کوي، نو وکیلانو ته پکار ده چې کار په مشوره او د موکل په امر ترسره کړي.<br>- مفت وکالت روا دی، خو اجوره هم ورباندې اخېستلای شي.<br>- وکالت په شپږو حالاتو سره پای ته رسېږي.<br>- د اخېستلو وکالت په دوه ډوله دی، خاص او عام | په غور اوري.<br>غوږ نیسي او یاملرنه کوي. |
|  | **کورنی کار:**<br>محترم استاد دې د ښوونکي کتاب ته په کتلو سره زده‌کوونکو ته کورنی کار ورکړي. |  |

## شپږم لوست:

**عنوان:** وکالت (۲)

**پاڼه:** ۳٦-۳۸

**وخت:** یو درسي ساعت (٤٥ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

الف:د وکیلانو د ډېروالي احکام، د وکالت صفت، او پر وکالت پورې اړوند مسائل وپېژني.

ب:ویل شوی لوست عملاً په خپل مناسب ځای کې پلی کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په وکالت پورې تړلي اصطلاحات:

نیابت: نیابت نږدېوالي اود ځان قایم مقام ته وایي، چې له وکالت سره مرادف دی.

ولایت: د (واو) په زېر قدرت او مرستې ته وایي او په اصطلاح کې په بل چا د خپلې خبرې منل که خوښه یې وي او که نه وي، ولایت بلل کیږي. ولایت او وکالت دواړه نیابت دی، خو وکالت د وکیل په خوښه نیابت دی او ولایت د شرعې له خوا اجباري نیابت دی، لکه د پلار ولایت د صغیر زوی په هکله

قِوامت: د چارواکو له خوا چې یو څوک د صغیرانو د ځان یا مال د سرپرستی لپاره وټاکل شي، قوامت بلل کیږي.

وصایت: لکه پلار چې د خپل مرګ په مهال د خپلو صغیرو وارثانو د سرپرستی لپاره یو چاته وصیت وکړي او ویې ټاکي وصایت بلل کیږي.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشیر، کاغذ، قلم، چارت او نور.

**د لوست لړۍ :**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | **محترم ښوونکی صاحب چې کله ټولګي ته ننوځي:**<br>-سلام اچوي او ټولګی تنظیموي.<br>-حاضري اخلي او کورنۍ کار ګوري.<br>-د تېر لوست ارزونه کوي،لکه:<br>- هغه کوم آیت دی چې وکالت پرې روا شوی دی.<br>-د وکالت ارکان ووایاست.<br>-الف:احمده!هغه آیت ووایه چې وکالت پرې روا شوی دی.<br>-ب:د وکالت ارکان څوک ویلای شي؟<br>-نوي لوست ته زده‌کوونکي هڅوي، لکه: | زده‌کوونکي د استاد پوښتنې ځوابوي.<br><br>غوږ نیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| | -ایا یو تن کولای شي چې ډېر وکیلان ونیسي او که نه؟<br>محترم ښوونکی له زده‌کوونکو څخه د ځوابونو له اوریدلو وروسته د دوی ذهن نوي لوست ته نږدې کوي او موضوع ته ننوځي. | |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>**- له بسم الله ویلو څخه وروسته :**<br>- محترم ښوونکی نوی عنوان(دوکیلانو ډیروالی) پر تخته لیکي.<br>- بیا زده‌کوونکو ته د پټې مطالعې هدایت ورکوي،محترم ښوونکی د وخت نه په ګټه اخیستنه څنډیز عنوانونه پر تخته لیکي،لکه: دوکیلانوډیروالی،دوکالت صفت،دوکالت پای.<br>- محترم ښوونکی له کمزورو زده‌کوونکو څخه غواړي چې په لوړ اواز یویو پاراګراف وواېي.<br>وروسته محترم ښوونکی د موضوع په اساسي شرحه پیل کوي او څنډیز عنوانونه روښانه کوي.<br>د لیک د نویو عنوانونو په هکله پوښتنه کوي.<br>- په کمزورو زده‌کوونکو باندې یو یو پاراګراف عبارت لولي.<br>- زده‌کوونکو ته د پوښتنو وخت ورکوي او هڅوني پلې کوي.<br>- په پای کې زده‌کوونکي ارزيابي کوي. | د استاذ په لارښوونو عمل کوي.<br>چوپه خوله مطالعه کوي.<br>ستونزمن ځایونه په نښه کوي.<br>داستاذ پوښتنې ځوابوي.<br>له استاذ څخه پوښتنې کوي اوخپلې درسي ستونزې ورته واېي.<br><br>غوږ نیسي او ژوره پاملرنه کوي. |
| لس دقیقې | **ارزونه:**<br>۵- آیا یو تن کولای شي چې څو تنه وکیلان ونیسي؟<br>٦- په اجورې سره د وکالت یو مثال ووایاست.<br>۷- د وکالت د پای موارد ووایاست. | د استاد پوښتنو ته ځواب وایې. |
| پنځه دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>- یو تن کولای شي چې د ځان په نیابت د خپلو چارو د اجرا او سمون لپاره وکیل یا وکیلان ونیسي.<br>- که د یو تن څخه ډېر کسان وکالت کوي، نو وکیلانو ته پکار ده چې کار په مشوره او د موکل په امر ترسره کړي.<br>- مفت وکالت روا دی، خو اجوره هم ورباندې اخېستلای شي.<br>- وکالت په شپږو حالاتو سره پای ته رسېږي.<br>- د اخېستلو وکالت په دوه ډوله دی، خاص او عام | په غور اوري او غوږ نیسي. |
| | **کورنی کار:**<br>محترم استاد دې د درسي کتاب ته له کتلووروسته زده‌کوونکو ته کورنی کار ورکړي. | |

## اووم لوست:

**عنوان:** مضاربت

**پاڼه:** ۳۹-۴۱

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱- د مضاربت تعریف، د روا والي دلیل، حکمت، رکن، ډولونه، حکم او شرطونه وپېژني.

۲- د اړتیا پر مهال په خپله ټولنه کې د مضاربت په هکله پوښتنو ته ځواب ورکړای شي.

۳- ویل شوی لوست عملاً پلی کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱- د سوداګرۍ په هکله معلومات:

د تجارت تعریف: د ګټې په خاطر په پلورنه او اخېستنه د مال اړول را اړول تجارت بلل کیږي. تجارت روا عمل دی چې په قرآن کریم او احادیثو ثابت دی.

د سوداګرۍ فضیلت: د تجارت کسب غوره کسب دی، په دې هکله ډېر احادیث راغلي، د رسول الله (ﷺ) څخه یو چا پوښتنه وکړه چې کوم کسب غوره دی؟ رسول الله (ﷺ) ورته وفرمایل: "عمل الرجل بیده و کل بیع مبرور" [د لاس کار او له ناروا پرته پلورل پېرودل]

په سوداګرۍ کې ناروا چارې: د چل او غولونې ټول ډولونه په تجارت کې ناروا دي، همدارنګه په درواغجنو سوګندونو د شي خرڅول حرام دي، او نور یې په لاندې ډول دي:

الف- احتکار: د خوراکي توکو اخېستل او بیا یې د قیمتۍ لپاره ساتل احتکار بلل کیږي.

رسول الله (ﷺ) له احتکار څخه منعه کړې ده، فرمایي: "المحتکر ملعون و الجالب مرزوق" احتکار کوونکی د الله تعالی له رحمت څخه لرې او (منډایي او مارکېټ ته) د خوراکي توکو راوړونکي د اله تعالي د پیرزوینې څخه برخمن دي.

ب- د بل چا له لورې په روانه بیعه باندې بیعه کول او د ځان لپاره چنه وهل.

د تجارت آداب:

۱- په معامله کې اساني.

۲- د ښو اخلاقو استعمال.

۳- د شبهو څخه ځان ساتل.

۴- صداقت او رېښتینولي.

۵- وخته کار پیلول یعنې د ورځې په لومړۍ برخه کې سهار وختي کارته پاڅېدل.

**د تدریس طریقه:** تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:** کتاب، تخته، قلم او نور.

د لوست لړۍ :

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | **سریزه:**<br>- ښاغلی ښوونکی چې کله ټولګي ته ننوځي:<br>• سلام اچوي او ټولګی تنظیموي.<br>• حاضري اخلي او کورنی کار ګوري.<br>• د تېر لوست ارزونه کوي:<br>- ولې یوتن ډیروکیلان نیسي ؟<br>- دخصومت وکیل کوم وکیل ته وایي؟<br>• نوي لوست ته زده‌کوونکي برابروي، لکه:<br>تېره ورځ مو د وکالت په هکله څه ناڅه معلومات ترلاسه کړل، دا موزده کړل چې په وکالت کې یو چاخپل کارپه بل کاوه، اوس پدې لوست کې یوڅوک خپلې روپۍ په بل چلوي اودې ته مضاربت وایي، ګورو چې څنګه ترسره کیږي ؟ راځئ غوږ شئ!. | د استاد پوښتنو ته ځواب وایي.<br><br>غوږ نیسي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>• د بسم الله الرحمن الرحیم له ویلو وروسته به ښاغلی ښوونکی:<br>• د لوست عنوان (مضاربت)، ورځ، نېټه پر تخته لیکي.<br>• په نوي عنوان لنډه رڼا اچوي.<br>• زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې په پټه خوله له ځان سره عبارت ولولي، دې جریان کې لاندې شیان پر تخته لیکي:<br>- د صحیح مضاربت احکام:<br>- د مضاربت د پای حالات:<br>- د مضاربت په اړه مسائل:<br>• پر زده‌کوونکو په لوړ اواز یوه یا دوه کرښې عبارت لولي.<br>• د عبارت د مفهوم په هکله له څو زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي.<br>• لوست شرحه کوي، هغه عناوین روښانه کوي چې پر تخته کښل شوي.<br>• بیا په یو یا دوه ممتازو زده‌کوونکو درس تکراروي. هڅوني پلې کوي.<br>• له زده‌کوونکو څخه د ستونزو په هکله پوښتنه کوي، که موجودې وي، هغه حل کوي او بیا د لوست ارزونه کوي | د استاد په هدایت عمل کوي.<br>په لوړ اواز له کتاب څخه عبارت لولي.<br>د استاد پوښتنې ځوابوي.<br>غوږ نیسي اوپه غور درس اوري، استاذ ته خپلې درسي ستونزې وای. |
|  | **ارزونه:** | د استاد پوښتنو ته ځواب واېي. |

| | | |
|---|---|---|
| لس دقیقې | ۱- د مال په خاوند کله اجر مثل لازمیږي؟<br>۲- د مضاربت په اړوند ځینې احکام ووایاست.<br>۳- د مضاربت عقد څه وخت له منځه ځي؟<br>٤- آیا مضارب کولای شي چې د مضاربت مال بل چاته ورکړي؟<br>٥- مضارب به د مضاربت مصارف له څه شي څخه پوره کوي؟<br>٦- لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ. | ۱- فاسد مضاربت کې<br>۲- امانت، وکالت او شرکت<br>۳- فسخه ګوښه کول، مړینه، د اهلیت له لاسه ورکولو او د مضاربت مال له منځه تلنې څخه عبارت دي |
| پنځه دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>- مضاربت په لغت کې سفرته وایي خودفقهاوو په اصطلاحاتو کې بل چاته په ټاکلې ګټه دخپل مال ورکول مضاربت بلل کیږي.<br>- مضاربت په قران،سنت اواجماع ثابت دی.<br>- د مضاربت رکن ایجاب اوقبول دی.<br>-مضاربت په دوه ډوله دی،چې یوه ته مطلق اوبل ته مقید مضاربت ویل کیږي.<br>-مضاربت غیرلازم رواعقد دی.<br>-مضاربت ځانګړي شرطونه لري،چې ځېنې یې په عاقدینو،پانګې اونوریې په ګټې پورې تړلي دي | غوږ نیسي او په غور اوري. |
| | **کورنی کار:**<br>له درسي کتاب څخه دې استاد زده کونکو ته کورنی کار ورکړي. | |

## اتم لوست:

**عنوان:** مضاربت (۲)

**پاڼه:** ۴۲-۴۴

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱- د صحیح مضاربت احکام، د پای حالات او د مضارب په هکله ځه مسایل وپېژني.

۲- ویل شوی لوست عملاً په ټولنه کې پلی کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱- کله چې د مال خاوند په مضاربت روپۍ ورکړي دا لاندې درې حالتونه پرې تېرېږي:

الف- د امانت حالت: کله چې مال ورته وسپارل شي، امانت شمېرل کېږي.

ب- د وکالت حالت: کله چې یې مال ورباندې واخېست، بیا وکالت ګرځي.

ج- د شرکت حالت: کله چې مال له اخېستلو څخه وروسته ګټه وکړه، بیا مضارب د مال د خاوند شریک ګرځي. [الجوهره النیره جـ ۲ صـ ۱۳۰]

۲- د صحت او فساد له اړخه د مضاربت ډولونه: په دې ویش کې مضاربت په دوه ډوله دی، چې یو ته صحیح مضاربت وایي او بل ته فاسد، بیا دا هر یو ځانګړي ډولونه لري.

د فاسد مضاربت ډولونه: دا هم په دوه ډوله دی:

لومړی: د مضاربت فساد په فاسدو شرطونو باندې: دا مضاربت لاندې ډولونه لري:

الف- هغه مضاربت چې د ځان لپاره ټاکلې ګټه ځانګړې کړې او نوره پاتې بیا تیته تقسیم کړي، لکه: لومړی به شل افغانۍ ماته راکوې، بیا که پاتې شوې هغه به سره نیمایي کوو.

ب- چې د مال خاوند په مضارب باندې د یو ټاکلي شي راوړل د ځان لپاره شرط کړي.

ج- چې له ګټې څخه وړاندې تاوان کې مضارب شریک کړي.

دویم: مضارب سره د مخالفت په صورت کې مضاربت لاندې ډولونه لري:

الف- چې د مال خاوند ورباندې خاص تجارت شرط کړي او هغه پرې بل وکړي.

ب- چې د مال خاوند ورته خاص ځای وښيي او هغه بل ځای کې تجارت وکړي.

ج- چې په نغدو د اخېستلو اجازه یې ورته کړې وي خو د نسیه نه، او مضارب یې په نسیه واخلي.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشیر، کاغذ او قلم.

د لوست لړۍ :

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | ښاغلی ښوونکی چې کله ټولګي ته ننوځي:<br>• سلام اچوي او ټولګی تنظیموي.<br>• حاضري اخلي او کورنی کار ګوري.<br>• د تېر لوست ارزونه کوي. لکه:<br>- د مضاربت مهم شیان کوم دي؟<br>- په مضاربت کې پانګه څه شی دی؟<br>• نوي لوست ته زده‌کوونکي برابروي، لکه:<br>تېره ورځ مو د مضاربت په هکله څه ناڅه معلومات ترلاسه کړل، اوس ګورو چې څه پکې پاتې دي او که نه؟ راځئ غوږ شئ!. | سلام او د استاذ پوښتنې ځوابول.<br>غوږ نیول |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>• د بسم الله الرحمن الرحیم له ویلو وروسته ښاغلی ښوونکی:<br>• د لوست عنوان (مضاربت ۲)، ورځ، نېټه او د کتاب پاڼه پر تخته لیکي.<br>• په نوي عنوان لنډه رڼا اچوي.<br>• زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې په پټه خوله له ځان سره عبارت ولولي، په دې جریان کې لاندې شیان پر تخته لیکي:<br>- د صحیح مضاربت احکام:<br>- د مضاربت د پای حالات:<br>- د مضاربت په اړه مسائل:<br>• پر زده‌کوونکو په لوړ اواز یوه یا دوه کرښې عبارت لولي.<br>• د عبارت د مفهوم په هکله له خو زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي.<br>• لوست شرحه کوي، هغه عناوین روښانه کوي چې پر تخته کښل شوي.<br>• بیا به په یو یا دوه ممتازو زده‌کوونکو درس تکرار کړي. هڅوني به پلې کوي.<br>• له زده‌کوونکو څخه د ستونزو په هکله پوښتنه کوي، که موجودې وي، د هغو حل کوي او بیا د لوست ارزونه کوي | د استاذ په لارښوونو عمل کوي.<br>د کتاب عبارت واېي.<br>له استاذ څخه پوښتنې کوي،او د محترم ښوونکي پوښتنې ځوابوي.<br>غوږ نیسي.<br>په غور درس اوري. |
| لس | **ارزونه:**<br>۱- د مال په خاوند کله اجر مثل لازمیږي؟<br>۲- د مضاربت په اړوند ځینې احکام ووایاست.<br>۳- د مضاربت عقد څه وخت له منځه ځي؟<br>٤- آیا مضارب کولای شي چې د مضاربت مال بل چاته ورکړي؟ | د استاد پوښتنو ته ځواب واېي<br>۱- فاسد مضاربت کې<br>۲- امانت، وکالت او شرکت |

| | | |
|---|---|---|
| دقيقې | ٥- مضارب به د مضاربت مصارف له څه شي څخه پوره کوي؟<br>٦- لاندې خالي ځايونه په مناسبو کلمو ډک کړئ. | ٣- فسخه ګوښه کول، مړينه، د اهليت له لاسه ورکونه او د مضاربت مال له منځه تلنې څخه عبارت دي |
| پنځه دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>✓ مضارب کله امين کله وکيل او بيا شريک ګڼل کيږي.<br>✓ مضاربت ځينې وخت اجاره او کله غصب هم کيداى شي.<br>✓ د ګټې د نشتوالي په صورت کې تاوان د مال په خاوند دی؟ او که ګټه موجوده وي بيا له ګټې څخه ورکول کيږي.<br>✓ مضاربت په شپږو شيانو پاى مومي.<br>✓ مضارب ته به تر هغې ګټه نه ورکول کيږي چې تر څو مال په پيسو تبديل نکړي.<br>✓ د اختلاف په صورت کې کله د مضارب خبره او کله د مال خاوند خبره د باور وړ ده. | غور نيسي او په غور اوري. |
| | **کورنی کار:**<br>له درسي کتاب څخه دې استاد کورنی کار ورکړي. | |

## نهم لوست:

**عنوان:** هبه

**پاڼه:** ٤٥ _ ٤٧

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱_ د هبې معنا، د مشروعیت دلیل، رکن، شرطونه او د هبې حکم وپېژني.

۲_ ویل شوی لوست عملاً په ټولنه کې پلی کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱_ هبی سره تړلي معلومات:

عطیه: ورکړه، دا د هبې له لفظ څخه عام دی، ځکه چې مهر هم په کې راځي.

هدیه: د عزت او اکرام په خاطر چا ته یو شی بخښل هدیه بلل کیږي.

صدقه: د اخرت د ثواب په خاطر چا ته یو شی ورکول صدقه ده.

۲_ ګټې هم هبه کېدای شي، لکه په عاریت کې، یعنې که یو بېل یا بېلچه چې چا ته د کار لپاره ورکړل شي او هغه ترې

ګټه واخلي، دا د ګټو هبه کول دي.

٤_ په هبه کې ټوکه: پر ټوکو هبه نه باطلیږي.

٥_ د هبې عام شرطونه:

۱_ هبه شوی مال به معلوم وي.

۲_ هبه به د لاس لاندې شي کې وي، نو هغه څیز چې څوك یې نلري، هبه یې سمه نه ده.

۳_ هبه شوی څیز به له نه هبه شویو څیزونو څخه فارغ وي.

٤_ هبه په قبض باندې ترسره کیږي، له قبض څخه مخکې هبه، سمه نه ده.

٥_ هغه عقدونه چې له قبض څخه پخوا پوره نه ګڼل کیږي هبه، صدقه، ګروي او د سلم سرمایه دي.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

کتاب، قلم، تخته، تباشیر، چارټ او نور

د لوست لړۍ :

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی ټولګي ته د ننوتلو پر مهال:<br>• سلام اچوي ،ټولګی څاري، حاضري اخلي،او کورنی کار ګوري.<br>• د تېر لوست ارزونه کوي، لکه:<br>الف: د مضاربت روپۍ له څو حالتونو څخه تیریږي؟<br>ب: فاسد مضاربت په څو ډوله دی ؟<br>• نوي لوست ته زده کوونکي برابروي، لکه:<br>• ګورئ په تېر لوست کې یو چا خپل مال بل ته د تجارت لپاره ورکاوه چې هغه وربانديې کارو بار وکړي، خو دې لوست کې یو سړی خپل مال بل ته بخښي، راځئ وګورو چې څنګه او څه وخت یو تن مال بخښي. | سلام ،حاضرۍ او د استاد پوښتنې ځوابوي.<br>د محترم ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>- ښاغلی ښوونکی د بسم الله الرحمن الرحیم له ویلو وروسته:<br>• نوی عنوان (هبه) پر تخته لیکي.<br>• د نوي عنوان (هبه) په هکله معلومات ورکوي.<br>• زده کوونکو ته هدایت ورکوي چې په چوپه خوله له ځان سره عبارت وواییي،ستونزمن ځایونه په نښه او پوښتنې یاداشت کړي.<br>• په دې لړۍ کې ښاغلی ښوونکی دا لاندې څنډیزعنوانونه پر تخته لیکي.<br>- د هبې، صدقې او هدیې توپیر<br>- د هبې معنا<br>- د هبې د رواوالي دلیل<br>- د هبې رکن<br>- د هبې شرطونه<br>• له محتلفو زده کوونکوڅخه غواړي چې په لوړ اواز یو یو پاراګراف ولولي.<br>• محترم ښوونکی د زده کوونکو له قرائت د تصحیح او د پوښتنو د ځوابولو څخه وروسته د پروګرام سره سم د لوست ټولې برخې روښانه کوي.<br>• زده کوونکو ته وخت ورکوي چې خپلې پوښنې مطرح کړي اومحترم ښوونکی په ډېره مینه د دوی پوښتنې ځوابوي.<br>• هڅونې عملي کوي او په پای کې د لوست ارزونه کوي اوبا استعداده زده کوونکي تشویقوي. | غوږ نیسي او د استاذ په لارښوونو عمل کوي.<br>پټه خوله مطالعه کوي.<br>په لوړ اواز له کتاب څخه عبارت لولي.<br>له استاذ څخه پوښتنې کوي.په درسي هڅونو کې برخه اخلي.<br>د استاد پوښتنو ته ځواب واي. |

| وخت | فعالیتونه | یادونه |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ـ هبه په لغت او اصطلاح کې څه ته وايي؟<br>۲ـ د هبې شرطونه بيان کړئ.<br>۳ـ قبض په څو لارو سر ته رسيږي؟ روښانه يې کړئ.<br>٤ـ د هبې حکم ووایاست.<br>۵ـ د کتاب د خالیګاوو ډکول. | ځواب وايې.<br>۱- موهوب ملکيت، تبرع<br>۲- عوض يې |
| ۵ دقیقې | د لوست لنډيز:<br>✓ هبه په لغت کې ورکړې ته وايي او د فقهاؤو په اصطلاح کې په خپله خوښه پرته له کوم تړون بل چا ته مال ورکول هبه بلل کيږي.<br>✓ هبه په قرآن، سنت او اجماع ثابته ده.<br>✓ هبه ځانګړي شرطونه لري چې دوه يې واهب کې او نور يې د موهوب پورې تړلي دي.<br>✓ قبض په دوه ډوله دی چې يو ته اصالتاً او بل ته نيابتاً قبض وايي.<br>✓ په هبه باندې د ملکيت ثبوت راځي، خو رجوع او فسخه په کې راتلای شي. | په غور اوري او غوره نيسې. |
| **کورنی دنده:**<br>له درسي کتاب څخه دې ښوونکی زده‌کوونکو ته کورنی دنده ورکړي. | | |

## لسم لوست:

**عنوان: هبه (۲)**

**وخت:** یو درسي ساعت (٤٥ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

الف: په هبه باندې د رجوع موانع یاد کړي.

ب: اولادونو، مور او پلار او وروڼو خویندو ته د هبې د ورکړې حالات وپیژني.

ج: ویل شوی لوست عملاً په خپل ځای کې پلی کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د هبې مصطلحات:

۱ـ واهب: هغه شخص ته ویل کیږي چې خپل مال چاته ور بخښي. (مالك)

۲ـ موهوب له: هغه شخص دی چې مال ورته بښل شوی.

۳ـ موهوب: هغه مال چې بښل کیږي. (هغه مملوك شی).

په هبه باندې د رجوع د موانعو لپاره دلایل:

۱ـ مالي عوض: رسول الله ﷺ فرمایي: ((الواهب احق بهبته مالم یثب منها)). ژباړه: واهب که عوض نه وي اخیستی د خپل بښل شوي مال د راګرځولو حق لري. دا عوض به یا په عقد کې شرط شوی وي او یا وروسته له عقد څخه اخیستل کیږي په دواړو صورتونو کې د رجوع مانع ګرځي.

د عوض ډولونه: په عمومي وېش کې عوض په دوه ډوله دی چې یو ته مالي او بل ته معنوي عوض وایي چې بیا معنوي عوض دا لاندې ډولونه لري:

۱ـ له خدای ﷻ څخه د ثواب غوښتل، کله چې څوك څه شی فقیر ته وبښي او فقیر یې قبض کړي، بیا مالك ورباندې رجوع نشي کولای، ځکه چې دا صدقه ده.

۲ـ صله رحمي، کله چې صله رحم ته څه وبښي بېرته به یې ترې نه غواړي، ځکه چې صله رحمي معنوي عوض دی.

۳ـ د ښځې توب او مېړه توب صله: د دوی ترمنځ که بخشش رامنځ ته شي دوی هم په یو بل باندې رجوع نشي کولای، ځکه چې دا هم معنوي عوض دی.

۲ـ کله چې په بښل شوي شی کې زیاتوالی راشي، په دې صورت کې ځکه رجوع نشي کولای چې هبه شوی د بل شي سره ګډ شوی.

۳ـ د عاقدینو د مړینې په صورت کې ځکه په هبه رجوع نه کیږي چې ملکیت تبدیل شو او وارثانو ته انتقال شو.

٤ـ د موهوب د هلاکت په صورت کې ځکه مالك رجوع نشي کولای چې شی له منځه تللی.

د رجوع حالات:

۱ـ رجوع د قاضي په پرېکړه.

۲ـ رجوع د عاقدینو په خوښه.

**د تدريس طريقه:**

تشريح، سوال او ځواب او تمثيل.

**درسي مواد:**

تخته، قلم، تباشير او نور.

| وخت | د ښوونكي فعاليتونه | د زده‌كوونكو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | - ښاغلی ښوونکی ټولګي ته د ننوتلو پر مهال:<br>● سلام اچوي ، حاضري اخلي،ټولګی تنظيموي نظافت او كورنی كار ګوري.<br>● د تېر لوست ارزونه كوي:<br>الف:د هبې اركان څه دي؟<br>ب:د هبې حكم څوک ویلای شي ؟<br>● نوي لوست ته زده‌كوونكي برابروي:<br>تېره ورځ مو دا زده كړل چې څوک كوم ناروغ ته مېوه دانه وړي دا هبه ده، ايا دا وړل شوي شيان ترې بېرته راوړلای شي او كه نه؟ راځئ وګورو چې دا كار څه حكم لري؟ كتاب ته وګورئ. | د استاذ پوښتنو ته ځواب وركوي.<br>غوږ نيسي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې كول:**<br>- ښاغلی ښوونکی به د بسم الله الرحمن الرحيم له ويلو وروسته:<br>● نوی عنوان (هبه ۲) او نېټه پر تخته ليكي.<br>● د نوي عنوان (هبه ۲) په هكله چې د هبې د رجوع موانع دي لنډ معلومات وركوي.<br>● زده‌كوونكو ته هدايت وركوي چې په چوپه خوله له ځان سره عبارت ووايي، په دې جريان كې ښاغلی ښوونكی دا لاندې شيان پر تخته ليكي:<br>- په هبه باندې د رجوع موانع<br>- اولاد ته وركړه<br>- خپلوانو ته وركړه<br>- د هبې په هكله مسئلې<br>● له زده‌كوونكوڅخه غواړي چې په لوړ اواز يو يو پاراګراف عبارت ولولي.محترم ښوونکی يې قرائت سموي،د عبارت دفهم په هكله كه ستونزې لري هغه ورته توضيح كوي.<br>● په آرام او سكون سره ټول لوست او پر تخته كښل شوي عنوانونه شرحه كوي.<br>-وروسته محترم ښوونکی د موضوع ټول اړخونه روښانه كوي، له | د استاذ خبرو ته غوږ نيسي.<br>چوپه خوله مطالعه كوي.<br>له استاد څخه پوښتنې كوي.<br>د استاد پوښتنو ته ځواب وايي.<br>د محترم ښوونكي په لارښوونو عمل كوي.د بحث له لارې ځان په لوست كې شريكوي. |

| وخت | فعالیتونه | ځوابونه |
| --- | --- | --- |
| | زده‌کوونکو سره دهبې په مختلفوحالاتو خبرې اترې کوي تر څولوست یې ښه په ذهن کې کښېني.<br>-هڅونې عملي کوي<br>-په پای کې زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې خپلې پوښتنې او استفسارات مطرح کړي د هغې له ځوابولو وروسته د لوست په باب د زده‌کوونکو ارزیابي پیل کوي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱_ د هبې د بېرته غوښتتنې موانع بیان کړئ.<br>۲_ د اولاد دونو ترمنځ ورکړه څه حکم لري؟ په لنډ ډول یې بیان کړئ.<br>۳_ مور او پلار ته په ورکړه کې وضاحت ورکړئ.<br>٤_ ورونو او خویندو ته څنګه ورکړه کېږي؟<br>٥- د خالیګاوو ډکول. | ځواب وکوي.<br>۱- روا ندی<br>۲- خوښه، قاضي |
| ٥ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>-په هبه باندې رجوع کول روا دی، خو د سړي له شان سره نه ښایي.<br>-په هبه باندې د رجوع موانع اووه دي چې ټول په دې حروفو کې راټول شوي (دمع خزقة)<br>-اولادو ته په ورکړه کې مساوات مستحب دی او مساوات د امام ابو یوسف په نظر نارینه اولاد له ښځینه سره برابرول دي او امام محمد په نظر نارینه ته د ښځینه اولاد دوه برابره ورکول قرآني مساوات دی.<br>- په ورکړه کې مور ته په پلار ترجیح او زیاتوالی سنت دی.<br>-ورونو او خویندو ته به مساوي برخه ورکوي خو د مشر خاص کول، په څه زیات شی هم روا دی. | غوږ نیسي او په غور اوري. |

**کورنۍ دنده:**

ښوونکی دې له درسي کتاب څخه زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي.

## یوولسم لوست:

**عنوان: ودیعت (امانت)**

**پاڼه: ۵۱ ـ ۵۳**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

**موخې: زده کوونکي باید:**

الف: د ودیعت معنا، د روا والي دلیل، حکم، د ساتنې لارې او د پای حالات یې وپېژني.

ب: ویل شوی لوست په خپل ځای کې عملاً پلی کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د ودیعت او امانت ترمنځ توپیر:

الف: قصداً په چا باندې د خپل مال ساتل ودیعت دی، خو که پرته له کوم قصده د بل سړي مال د یو چا لاس ته ورشي، لکه: باد د چا کور یا لاس ته جامې وروغورځوي دا امانت دی.

ب: بل توپیر یې دا دی چې په ودیعت کې سړی د ضیاع له تاوان څخه په هغه صورت کې خلاصیږي، چې د مالك له شروطو سره سم شی وساتي، خو په امانت کې هېڅکله له تاوان څخه نه خلاصیږي، مګر په هغه صورت کې چې خاوند ته یې وسپاري.

ج: په ودیعه کې امین شی نشي خیراتولی او نه یې چا ته د استعمال لپاره ورکولای شي او نه یې خپله استعمالولی شي.

د: ودیعت د غوښتلو په صورت کې نشي وروسته کولای.

په ودیعې پورې تړلي اصطلاحات:

امانت: امانت د خیانت ضد چې په اصطلاح کې له امین سره موندل شوي شي ته وایي او د امانت لفظ له ودیعت څخه عام دی. د امانت په تعریف کې هماغه الفاظ یعنی د هغو معناوې راوړل په کار دي چې د فقهی په کتابونو کې راغلي دي، نو ودیعه هم د امانت یو ډول دی.

اعاره: له حلال شي څخه د عین له بقاء سره ګټه اخیستل اعاره بلل کیږي.

لقطه: تعریف یې په درسي کتاب کې موجود دی.

د ودیعې ځانګړتیاوې: ودیعه لاندې ځانګړتیاوې لري:

۱ـ ودیعه جائز غیر لازم عقد دی، یعنې دواړه جانبه پرې ملزم نه دي څه وخت چې وغواړي عقد له منځه وړلای شي.

۲ـ ودیعه د امانت یو عقد دی.

۳ـ ودیعه له تبرعي عقودو څخه یو عقد دی، چې یو له بل سره د مرستې په خاطر ترسره کیږي.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشیر، قلم او نور.

د لوست لړۍ :

| وخت: | د ښوونکي فعالیتونه: | د زده‌کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – ښاغلی ښوونکی ټولګي ته د ننوتلو پر مهال:<br>• سلام اچوي، حاضري اخلي ،ټولګی تنظیموي،نظافت او کورنی کار ګوري.<br>• د تېر لوست ارزونه کوي:<br>الف:څوک کولای چې په هېڅ باندې د رجوع موانع ووایې؟<br>• وروښو اوخویندو ته څنګه ورکړه پکار ده؟<br>• نوي لوست ته زده‌کوونکي برابروي:<br>ګرانو زده‌کوونکو!په دې پوه شوئ یاست چې یو څوک کولای شي خپل مال چا ته وبښي، نن به په لوست کې ولولئ چې یو تن خپل مال په بل چا ساتي. | ځواب ورکوي.<br>د استاد پوښتنې ځوابوي، غوږ نیسي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– ښاغلی ښوونکی به د بسم الله الرحمن الرحیم له ویلو وروسته:<br>• نوی عنوان (ودیعة)او نېټه پر تخته لیکي.<br>• د نوي عنوان (ودیعې)په عمومي مفهوم لنډه رڼا اچوي.<br>• زده‌کوونکو ته هدایت ورکوي چې په چوپه خوله له ځان سره عبارت ووایي، دې وخت نه په ګټه اخیستنه د لوست څنډېز عنوانونه او مهم ټکي پر تخته لیکي:<br>– د ودیعت تعریف<br>– د امانت حکم<br>– د امانت استعمال<br>– د امانت د پای حالات<br>– د امانت په هکله مسایل<br>• محترم ښوونکی پر زده‌کوونکو خصوصاپه کمزورو زده‌کوونکو په لوړ اواز یو یو پاراګراف عبارت لولي،لوستنه اوقرائت ورته سموي.<br>• بیامحترم ښوونکی له خپل پروګرام سره سم دلوست په تشریح پیل کوي.<br>• زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې د لوست په هکله خپلې پوښتنې وکړي،ښوونکی ځواب ورکوي او په ټولنه کې ودیعت د پلې کولو په هکله له زده‌کوونکو سره خبرې اترې کوي.<br>• په زده‌کوونکي هڅوني پلې کوي او په پای کې د لوست او زده‌کوونکو ارزونه کوي. | غوږ نیسي.<br>د استاذ په لارښوونو عمل کوي.<br>په لوړ اواز د کتاب عبارت لولي.<br>له استاد څخه پوښتنې کوي<br>د استاد پوښتنو ته ځواب وایې او ځان په درس کې شریکوي. |

| وخت | فعالیتونه | یادښت |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ـ ودیعه لغتاً او اصطلاحاً تعریف کړئ.<br>۲ـ امانت باید څرنګه وساتل شي؟<br>۳ـ امانت ساتونکی په کومو حالاتو کې ضامن ګڼل کیږي؟<br>٤ـ په کومو حالاتو کې امانت پای مومي.<br>۵ـ د مودِع او مودَع ترمنځ د اختلاف په صورت کې د چا خبره د منلو وړ ده؟<br>۶ـ د خالیګاوو ډکول. | د استاد پوښتنو ته ځواب وایې.<br>۱- ورکوونکی، امانت اخیستونکی<br>۲- خیانت یې کړی وي |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>ـ امانت په لغت کې ترک او پرېښودلو ته وایي او د فقهاؤو په اصطلاح کې خپل مال په بل چا ساتل ودیعت بلل کیږي.<br>ـ ودیعت له دوو تنو څخه جوړ دی چې یوه ته مودع د دال په زېر او بل ته مودع د دال په زور نوم ورکول کیږي.<br>ـ ودیعت په قرآن او سنت ثابت دی.<br>ـ د امانت رکن ایجاب او قبول دی.<br>ـ د مالك لپاره د مال ساتل د امانت حکم دی.<br>ـ امانت به په هغه چا ساتي چې د ده په عیال کې وي.<br>ـ امانت په شپږو حالاتو کې تاوانیږي.<br>ـ امانت په درې شیانو سره پای مومي. | په غور اوري او ښه غوږ نیسي. |

**کورنۍ دنده:**
ښوونکی دې درسي کتاب ته په کتلو سره زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي.

## دولسم لوست:

**عنوان: غصب**

**پانه:** ۱۰۲ _ ۱۰٤

**وخت:** یو درسي ساعت (٤٥ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

الف: د غصب معنا، د ناروا‌والي دلیل، او د موضوع اړوند مسائل وپېژني.

ب: د عمل په ډګر کې له غصب څخه ځان وژغوري.

په غصب پورې تړلي اصطلاحات:

تېری (تعدي): له غصب څخه عام دی، د مال په اخېستلو، له مینځه وړلو، په بدن او عزت باندې تېري کولو ټولو ته ورشاملېږي.

اتلاف:

د شي خرابولو او له مینځه وړلو ته اتلاف وايي.

اختلاس: د خاوند د غفلت له امله په چل باندې د هغه مال اخېستلو ته په لغت کې اختلاس وايي، خو د فقهاؤو په اصطلاح کې په ښکاره ډول د خاوند په وړاندې د مال اخیستل اختلاس بلل کېږي.

غلا (سرقت): له محفوظ ځای څخه په پټه د بل چا مال اخیستل سرقت یا غلا بلل کېږي.

حرابت: په زور او جبر سره دچا تالا کول په داسې حال کې حرابت بلل کېږي چې مرسته غوښتل یا نجات ناشونی وي، لکه په غرونو او دښتو کې د لارو شوکول.

قیمت، ثمن او سعر:

په پښتو او دري کې د شي ارزښت ته قیمت ویل کېږي، که هغه ارزښت دبیعې د عقد په وخت ورته ټاکل شوی وي او که د دریمانو یا چارواکو له خوا، خو د فقهې په اصطلاح کې د عقد په وخت د بیعې په مقابل کې ټاکل شوی مال ته ثمن وايي، که هغه د مبیعې له ریښتیني ارزښت سره نژدې وي یا ورڅخه ګران یا ارزان وي، په دې ټولو صورتونو کې ورته ثمن ویل کېږي، خو که دیو څیز لپاره د دریمګړو له خوا ارزښت وټاکل شي هغه ته قیمت وايي، لکه یو څوک چې د بل چا مال تلف کړي او هغه ورڅخه د تاوان غوښتنه وکړي، نو د پوهه دریمانو له خوا حقیقي ارزښت ته نژدې عوض ورته ټاکل کېږي او همدې عوض ته قیمت ویل کېږي.

که د چارواکو له خوا د ځینو څیزونو نرخونه وټاکل شي، لکه د غوښې، وچې ډوډۍ او نورو، دې چارې ته تسعیر، یا نرخ اېښودل ویل کېږي، خو څرنګه چې ثمن، قیمت او سعر درې واړه د څیزونو ارزښت ټاکي، نو کله ناکله یو د بل پر ځای کارول شوي.

د قیمت د وجوب حالات:

۱_ فاسده بیعه کې.

۲_ په غصب شوی مال کې چې کله له منځه ولاړ شي او د غیر مثلیاتو له ډلې څخه وي.

مثلیات: هم دوه ډوله شیان لکه: غنم، جوار او د یوې کارخانې یو ډول مصنوعات، لکه: ناشکن ګیلاسونه او کاسې.

قیمیات: غیر مثلي شیان لکه: کورونه، حیوانات او نور.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تباشیر، تخته، قلم، کاغذ او نور.

**د لوست لړۍ :**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | -ښاغلی ښوونکی ټولګي ته د ننوتلو پر مهال ،سلام اچوي، حاضري اخلي، ټولګی تنظیموي،نظافت او کورنی کار ګوري.<br>● د تېر لوست ارزونه کوي، لکه:<br>- محترم ښوونکی تیرو لوستو ته په کتنه زده کوونکي ارزیابي کوي:<br>- د بل چا ضمانت کول کفالت او د بل په هدایت د هغه پر ځای پیسې ورکول حواله ده، خو بل ته د کار اجراء کول وکالت دی.<br>- بل ته په ګټه او تاوان روپۍ ورکول مضاربت، خو خوشې ورکول پرته له کوم عوضه هبه ده او ورباندې ساتل امانت دي.<br>● نوي لوست ته زده کوونکي برابروي، لکه:<br>ګوری ما درته وویل: څوک چې په بل چا مال ساتي دا امانت شو، خو که په زور یې ترې واخلي، بیا غصب دی، راځئ وګورو چې غصب څه شی او څنګه ترسره کیږي. | ځواب ورکوي،د استاذ له غوښتنو سره سم عمل کوي.<br>غوږ نیسي.او په غور اوري. |
| ۲۰ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>- ښاغلی ښوونکی د بسم الله الرحمن الرحیم له ویلو وروسته:<br>● نوی عنوان (غصب) تخته باندې لیکي.<br>● د نوي عنوان (غصب) په کلي مفهوم لنډه رڼا اچوي.<br>● زده کوونکو ته هدایت ورکوي چې په چوپه خوله له ځان سره عبارت ووایي، په دې جریان کې ښاغلی ښوونکی دا لاندې شیان پر تخته لیکي:<br>- د غصب تعریف<br>- د غصب د ناروا والي دلیل<br>- د غصب احکام<br>● پر زده کوونکو باندې په لوړ اواز یو یو پاراګراف عبارت لولي ،لوست ورته سموي او ځنې ستونزې یې ځوابوي.<br>● وروسته محترم ښوونکی د لوست په شرحه کولو پیل او ټولې برخې یې روښانه کوي.<br>● د زده کوونکو پوښتنې ځوابوي،په پای کې زده کوونکي او لوست ارزیابي | په غور اوري اوغوږ نیسي.<br>پټه مطالعه کوي.<br>په لوړ اواز له کتاب څخه عبارت لولي.<br>خپلې ستونزې او پوښتنې مطرح کوي. |

| وخت | فعالیتونه | ارزونه |
| --- | --- | --- |
| | کوي ،ممتاز زده‌کوونکي تشويق اوتقديروي.<br>● بيا په آرام او چوپتيا سره لوست او پر تخته د کښل شوو عنوانونو شرحه کوي.<br>● له زده‌کوونکو څخه د ستونزو په هکله پوښتنه کوي.هڅونې پلې کوي.<br>● په ممتاز زده‌کوونکي لوست تکراروي او په پای کې د لوست ارزونه کوي. | |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱_ غصب لغتاً او اصطلاحاً تعريف کړئ.<br>۲_ پر غصب پورې تړلي احکام بيان کړئ.<br>۳_ هغه حالات بيان کړئ چې د غصب شوي مال قيمت پرې لازميږي. | د استاد پوښتنو ته ځواب وايي. |
| ۵ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>-غصب په لغت کې په زور سره د چا مال اخيستلو ته وايي، خو د فقهاؤو په اصطلاح کې د مالك له اجازې پرته د مال په زور اخيستلو ته غضب وايي.<br>-د غصب ناروااوالی په قرآن، سنت او اجماع ثابت دی.<br>- غصب درې حکمونه لري چې د ګناه خاوند ته ببرته د مال سپارل او د اصل مال د نشتوالي په صورت کې تاوان له ورکولو څخه عبارت دی.<br>-که چېرې د ساز او سرود سامان له چا څخه غصب شي د تاوان په هکله يې امام صاحب وايي چې تاوان به ورکوي.<br>-د غصب شوي مال قيمت په درې حالاتو کې لازميږي. | په دقت اوتوجه سره اوري اوغور نيسي. |

**کورنۍ دنده:**

ښوونکی دې زده‌کوونکو ته له درسي کتاب څخه کورنۍ دنده ورکړي.

## دیارلسم لوست:

**عنوان: لقطه (موندل شوی مال)**

**پاڼه: ۱۰۵ _ ۱۰۸**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥ دقیقې)**

موخې: زده‌کوونکي باید:

الف: د لقطې معنا، حکم، ډولونه او اړوند مسائل وپېژني.

ب:دلقطې احکام له شرائطو سره سم په خپل ټولنیز ژوند کې پلي کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په لقطې پورې تړلي اصطلاحات:

لقیط: هغه ماشوم ته وایي چې خپلې کورنۍ د ډوډۍ نه ورکولو لپاره یا د زنا د تور له وېرې غورځولی وي.

کنز: هغه خښ شوي مال ته وایي چې خښوونکی یې معلوم نه وي.

په موندل شوي مال باندې تجارت کول روا نه دي، ځکه چې د موندونکي لاس د امین لاس دی او تجارت ګټه او تاوان لري، نو کېدای شي چې ضایع شي، حال دا چې د لقطې ضایع کول روا نه دي.

په ورک شوي مال باندې د هغې مودې زکات نشته چې څومره ده (مالک) سره نه وي.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشیر، کتاب، قلم، کتابچه...

**د لوست لړۍ :**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی ټولګي ته د ننوتلو پر مهال:<br>● سلام اچوي، حاضري اخلي او ټولګی تنظیموي.<br>● نظافت او کورنی کار ګوري.<br>● د ځینو ضروري پوښتنو په مطرح کولو د تېر لوست ارزیابي کوي:<br>- الف:غصب څوک تعریفولای شي؟<br>- ب:د غصب شوی مال تاوان څه وخت ورکول کیږي؟<br>● نوي لوست ته زده‌کوونکي برابروي او هڅوي:<br>تېره ورځ مو دا وویل چې که څوک له چا څخه خپل ارزښتناک مال په زور او جبر سره واخلي ګنهګارېږي، خو که یو سړی همداسې په لار، موټر یا بل ځای کې څه شی پیدا کړي، څنګه به کیږي ؟اوڅه به ورسره کوي؟ راځئ وګورو چې دا مساله څنګه ده ؟خپلو کتابونو ته وګورئ. | سلام ځوابوي او د ښوونکي لارښوونو ته غوږ نیسي.<br><br>د استاذ پوښتنو ته ځواب وایې او په دقت د خپل استاذ سره ملګرتیا کوي. |

| وخت | فعالیتونه | یادښت |
| --- | --- | --- |
| ۲۵<br>دقیقې | **لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د بسم الله الرحمن الرحیم له ویلو وروسته:<br>● نوی عنوان (لقطه) پر تخته لیکي،په کلې مفهوم یې لنډه رڼا اچوي او زده‌کوونکو ته یې روښانه کوي.<br>● د نوي عنوان (لقطه) په هکله به معلومات ورکوي.<br>● زده‌کوونکو ته هدایت ورکوي چې په چوپه خوله له ځان سره عبارت ووایي، ستونزمن ځایونه او کلمې په نښه کړي.<br>● دې جریان کې ښاغلی ښوونکی ځینې مهم څنډیز عنوانونه پر تخته لیکي:<br>- د لقطې معنا<br>- د لقطې حکم<br>- د لقطې ډولونه<br>- د اعلان موده<br>- د اعلان اجوره<br>- خاوند ته د واپسۍ شرط<br>- د موندونکي د مالك کېدو حکم<br>● وروسته محترم ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې په لوړ اواز یو یو پاراګراف عبارت ولولي،د اشتباهاتو په صورت کې محترم ښوونکی د دوی قرائت سموي.<br>● محترم ښوونکی د لوست اړخونه روښانه او تشریح کوي.<br>● زده‌کوونکوته وخت ورکوي چې خپلې پوښتنې اونظریات مطرح کړي.<br>● محترم ښوونکی د زده‌کوونکوپوښتنې ځوابوي، له دوی سره د موضوع په هکله خبرې اترې کوي او لدې لارې په درس کې ګډون ورکوي.<br>● هڅوني پلې کوي.<br>● په پای کې لوست او زده‌کوونکي ارزیابي کوي. | غوږ نیسي.<br>د محترم ښوونکي په لارښوونو عمل کوي.<br><br>په لوړ اواز د کتاب څخه یویو پراګرف عبارت لولي.<br>دخپلو ستونزو په هکله پوښتنه کوي.<br>پوښتنې کوي اوپه لوست کې ځان شریکوي. |
| ۱۰<br>دقیقې | **ارزونه:**<br>۱_ لقطه لغتاً او اصطلاحاً تعریف کړئ.<br>۲_ د لقطې حکم بیان کړئ.<br>۳_ له لقطې سره څه کول په کار دي؟ بیان یې کړئ.<br>٤_ موندل شوی مال باید په کوم ځای کې اعلان شي؟<br>٥_ ورک شوی مال به تر کومې مودې پورې اعلانیږي؟<br>٦_ د لقطې د مالك کېدو اړوند احکام ووایاست. | ځواب ورکوي |

| ٥ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>۱_ له بل چا څخه ورک موندل شوي مال ته لقطه ویل کیږي.<br>۲_ د لقطې ساتنه ځینې وخت مستحب، ځینې وخت مکروه او حرامېدی هم شي.<br>۳_ لقطه په دوه ډوله ده.<br>٤_ د موندل شوي مال اعلانول په کار دي چې دا کار به خپله موندونکی ترسره کوي.<br>٥_ د ځینو شیانو خوړل او د ځینو اعلانول په کار دي.<br>٦_ غني ته د موندونکي مال نه ګټه اخیستل روا نه دي، خو غریب یې استعمالولای شي.<br>۷_ که موندل شوی مال خیرات شي، بیا یې مالک اختیار لري. | غوږ نیسي. |
|---|---|---|

**کورنۍ دنده:**

ښوونکی دې له درسي کتاب څخه زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي.

## څوارلسم لوست:

**عنوان: مزارعت (دهقاني)**

**پاڼه: ۱۰۹ _ ۱۱۱**

**وخت: يو درسي ساعت (٤٥ دقيقې)**

موخې: زده‌کوونکي بايد:

الف: د مزارعت تعريف، حکم، شرطونه، احکام او د پای حالات وپېژني.

ب: ويل شوی لوست عملاً پلی کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د مزارعت د روا والي دليل: د دهقانی مشروعيت او روا والی په حديث او قياس باندې ثابت دی. په يو حديث شريف کې چې ابن عمرؓ روايت کړی، داسې راغلي رسول الله ﷺ د خيبر اوسېدونکو ته ځمکه د هغې د حاصلاتو په ځينې برخه باندې اجاره ورکړې وه او همدا عمل مزارعت دی.

قياس: فقهاؤو کرامو دهقاني په مضاربت باندې قياس کړې، ځکه په مضاربت کې هم کار د يو چا او روپۍ د بل چا او مزارعت هم همدا شان دی. د دې ترمنځ ګډه علت د دواړو (مالك او دهقان) اړتياوو پوره کول دي.

مزارعت په لومړي حالت کې اجاره چې په پای کې په شرکت بدلېږي.

له بل چا څخه په اجاره اخيستل شوې ځمکه هم په دهقانۍ ورکول روا دي، نو له دې څخه دا معلومېږي چې د ځمکې تام ملکيت ورته شرط نه دی، که چېرې يې څوك د ګټې اخيستلو مالك هم وي کافي ده.

د عشري ځمکې کرل:

که چېرې کوم دهقان عشري ځمکه وکري او تخم هم د هقان اچولی وي، د امام ابوحنيفه رحمه الله تعالی په نظر عشر د ځمکې په خاوند دی، لکه څنګه چې په اجاره کې په مالك باندې دی، خو د امام ابويوسف او امام محمد رحمهماالله تعالی په نظر په فصل باندې دی، که تخم چېرې بادار (مالك) اچولی وي، بيا اتفاقاً عشر په مالك باندې دی.

**د تدريس طريقه:**

تشريح، سوال او ځواب او تمثيل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشير، کتاب، قلم ...

**د لوست لړۍ :**

| وخت: | د ښوونکي فعاليتونه: | د زده‌کوونکو فعاليتونه: |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | -ښاغلی ښوونکی ټولګي ته د ننوتلو پر مهال:<br>● سلام اچوي، حاضري اخلي ، ټولګی تنظيموي،نظافت او کورنی کار ګوري.<br>● د تېر لوست ارزونه کوي، لکه:<br>الف:لقطه څوك تعريفولای شي؟ | سلام،حاضرۍ او د ښوونکي غوښتنې ځوابوي.<br><br><br><br>غوږ نيسي او په غور اوري. |

| | | |
|---|---|---|
| | ب:کوم شی به یو کال اعلانیږي؟<br>● نوي لوست ته زده‌کوونکي برابروي:<br>ګورئ زده‌کوونکو! د خدای په ځمکه که چا څه شی وموند په هغې به سترګې نه پټوي او د دې لپاره به یې څرګندوي چې خاوند یې ومومندل شي، که یو په خپله هغه ځمکه کې چې ده په دهقانی نیولي وه کوم معدن پیدا کړ هغه د مالكُ دی، خو دولت ته به خپله برخه ورکوي.<br>راځئ وګورو چې دهقاني څه شی؟ او څنګه ده؟ | |
| ۲۵ دقیقې | **لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د بسم الله الرحمن الرحیم له ویلو وروسته:<br>● نوی عنوان (دهقاني)او نېټه پر تخته باندې لیکي.<br>● د نوي عنوان (دهقاني) په هکله لنډ معلومات ورکوي او زده‌کوونکوته یې روښانه کوی .<br>● زده‌کوونکو ته هدایت ورکوي چې په چوپه خوله له ځان سره عبارت ووایي او ستونزې په نښه کړي دې وخت نه په ګټه اخستنه ښاغلی ښوونکی څنډیز عنوانونه اود درس( مزارعت) اساسې ټکې پر تخته لیکي:<br>- د مزارعت (دهقانی) تعریف<br>- رکن یې<br>- حکم یې<br>- د جواز صورتونه یې<br>- د مزارعت شرطونه<br>- د دهقانی احکام<br>- د دهقانی پای<br>● وروسته محترم ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې په لوړ اواز یو یو پاراګراف عبارت ولولي.محترم ښوونکی د زده‌کوونکو لوستنه څاري ، غلطی یې سموي،ستونزې او پوښتنې ورته ځوابوي.<br>● دې پسې محترم ښوونکی دلوست ټول اړخونه روښانه کوي او له زده‌کوونکوسره دمزارعت په مختلفو موضوعاتوغږیږي.<br>● هڅوني پلې کوي، د یو یو عنوان لږ توضیح غواړي، بیا لوست تشریح کوي.<br>● په پای کې ممتاز زده‌کوونکی تشویقوي او ټول د لوست یادولو ته هڅوي. | د ښوونکي له لارښوونې سره سم په پټه خوله کتاب مطالعه کوي.<br><br>په لوړ اواز د کتاب عبارت لولي.<br><br>خپلې ستونزې ښوونکي ته وایې.<br><br>د استاذ څخه پوښتنې کوي اود استاد پوښتنو ته ځواب وایې. |

| | | |
|---|---|---|
| | • محترم ښوونکی د دې لپاره چې دخپل لوست په پلې کولو ډاډمن شي زده‌کوونکي ارزيابي کوي. | |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱ـ مزارعت لغتاً او اصطلاحاً تعريف کړئ.<br>۲ـ د جايز مزارعت صورتونه په لنډ ډول ووایاست.<br>۳ـ د مزارعت شرطونه په لنډ ډول بيان کړئ.<br>٤ـ د دهقانی د احکامو په اړوند خپل معلومات ورکړئ. | ځواب وابي. |
| ٥ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>- د ځمکې د خاوند له خوا دهقان ته د حاصلاتو پر يوه معلومه برخه عقد ته دهقاني ويل کيږي.<br>ـ د دهقانی رکن  ايجاب او قبول دی.<br>ـ د امام صاحب په نظر د دهقانی عقد باطل او صاحبينو ورته څلور ډولونه ښودلي چې درې صورتونه يې جايز او يو يې ناروا دی.<br>ـ دهقاني اته شرطونه لري چې ځينې يې د عاقدينو او ځينې يې په ځمکه کې دي.<br>ـ صحيح مزارعت څلور احکام لري چې ځينې يې  عرف او عادت ټاکي.<br>ـ دهقاني په درې حالاتو کې پای مومي. | غوږ نيسي او په غور اوري. |

**کورنی دنده:**

محترم ښوونکی صاحب دې کتاب ته له کتلو وروسته زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي.

## پنځلسم لوست:

**عنوان: مساقات (باغواني) پاڼه: ۱۲۲-۱۱٤**

**وخت: یو درسی ساعت (٤۵ دقیقې)**

موخې: زده کوونکي باید چې:

الف:د مساقات معنا، حکم، رکن د باغوانی او دهقاني ترمنځ توپیرونه، شرطونه او د باغبانی د پای حالات وپیژنئ.

ب: ویل شوی لوست په خپل ځای کې له ټاکلو شرایطو سره سم پلی کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

مساقات سره تړلي اصطلاحات:

مناصبة: مناصبه د مغارسة په نامه هم یادیږي او دې ته ویل کیږي چې یو څوک خپله سپینه ځمکه د ټاکلي مودې لپاره د نیالګیو کېنولو لپاره په داسې حال کې بل ته ورکړي چې ونې او ځمکه به د دواړو شریکه وي.

د مساقات او مناصبې ترمنځ توپیر دا دی چې په مغارسة کې سپینه ځمکه د نیالګیو د کرلو لپاره په اجاره ورکوي او په مساقات کې کرلي نیالګي په اجاره ورکول کیږي.

اجاره: په لغت کې په مزدورۍ ورکولو ته وایي خو د فقهاءوو په اصطلاح کې په ټاکلي عوض باندې د ګټو پلورل اجاره بلل کیږي.

**د مساقات یا باغوانی د روا والی حکمت:**

د باغوانی د مشروعیت حکمت د ګټو ساتل او د اړتیا دفع کول دي. هغه داسې چې یو څوک به ونې لري خو په سمبالولو یې نه رسیږي، بل به ددې کار لپاره وخت لري، مګر ونې به نلری، نو ددې لپاره چې یو له بل نه د ګټې اخیستلو لارې چارې برابرې شي، بناءً باغبانی روا شوه. تر څو مالک له باغبان او باغبان له مالک څخه ګټه ترلاسه کړي.

د فاسدې باغوانۍ احکام:

کله چې د باغواني په شروطو کې کوم خلل یا نمیګړتیا رامنځته شي، که چیرې دا عمل د کار د پیلېدو وړاندې وي بیا یې فسخه کول واجب دی او هیڅ شي نه په مالک او نه باغبان باندې لازمیږي، ځکه چې د وجوب اثر په صحیح عقد کې څرګندېده او هغه رامنځته نشو. خو که فساد وروسته له پیل څخه رامنځته شو بیا باغبان د اجورې مستحق او مالک د میوې مستحق ګرځي.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشیر، قلم...

د لوست لړۍ :

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| پنځه دقیقې | - ښاغلی ښوونکی ټولګي ته د ننوتلو پر مهال:<br>● سلام اچوي، حاضري اخلي ،ټولګی تنظیموي،نظافت او کورنی کار ګوري.<br>● د تېر لوست ارزونه کوي، لکه:<br>الف: د بزګرۍ د جواز نه لرلو صورت کوم دی؟<br>● نوي لوست ته زده کوونکي برابروي:<br>په تیر لوست کې مو دا وپیژندل چې یو سړی بل چاته د کر کیلې لپاره ځمکه ورکوي، خو که یو څوک ونې یو تن ته په څو ومي برخې میوې باندې ورکړي، څه نوم ورته اخیستل کیږي؟ راځئ چې وګورو دا کار څنګه تر سره کیږي. | ځواب ورکوي.<br>غوږ نیسي اوپه غور اوري. |
| ۲۵ دقیقې | **لوست وړاندې کول:**<br>- ښاغلی ښوونکی د بسم الله الرحمن الرحیم له ویلو وروسته:<br>● نوی عنوان (باغواني)او نېټه پر تخته لیکي،دمساقات کلي او اساسي مفهوم په هکله زده کوونکو ته لنډ معلومات ورکوي.<br>● زده‌کوونکو ته هدایت ورکوي چې په چوپه خوله له ځان سره عبارت ووایي.<br>● په دې جریان کې ښاغلی ښوونکی د موضوع (مساقات)څنډېز عنوانونه پر تخته لیکي:<br>- د مساقات معنا<br>- د باغوانی حکم<br>- هغه ونې چې باغواني پکې جواز لري.<br>- د باغوانی او دهقانۍ تر منځ توپیرونه:<br>- د باغوانی شرطونه<br>- د باغوانی احکام<br>● محترم ښوونکی زده‌کوونکوته هدایت ورکوي چې په لوړ اواز دکتاب عبارت یو یو پاراګراف ولولي.<br>● محترم ښوونکی د زده کوونکولوستنه څاري او سموي یې، د دوی پوښتنې ځوابوي.<br>● له دې نه وروسته محترم ښوونکی لوست تشریح کوي، له زده‌کوونکو سره د موضوع په هکله غږیږي او دوی ته هم په لوست کې ګډون ورکوي،دمساقات ژوندي او عملي صورتونه څیړي. | غوږ نیسي،د استاذ په لارښوونو عمل کوي.<br>پټه مطالعه کوي.<br>په لوړ اواز د کتاب عبارت لولي.<br>د ستونزمنو عبارتونو او کلماتو پوښتنه له استاذ څخه کوي او د استاد پوښتنې ځوابوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | • هڅوني پلې کوي.<br>• په پای کې محترم ښوونکی زده‌کوونکي ارزيابي کوي. | |
| لس دقيقې | **ارزونه:**<br>۱) مساقات په لغت او اصطلاح کې تعريف کړئ.<br>۲) د مساقات او مزارعت ترمنځ توپيرونه په ګوته کړئ.<br>۳) د باغوانۍ شرطونه ووایاست.<br>٤) د باغوانۍ احکام په لنډ ډول بيان کړئ.<br>٥) د باغوانۍ د پای حالات بيان کړئ. | ځواب ورکوي. |
| پنځه دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>– د ميوه لرونکو ونو ، باغبان ته په ټاکلې برخې ميوه باندې ورکول باغواني بلل کيږي.<br>– د امام ابوحنيفه رحمة الله تعالى باغبانی باطله ګڼي خو امام ابو يوسف او امام محمد يې روا بولي.<br>– د باغوانۍ رکن ايجاب او قبول دي.<br>– په ميوه لرونکو ونو کې باغواني روا ده.<br>– باغواني او دهقاني څلور توپيرونه لري.<br>– باغواني ځانګړي احکام لري چې ځينې يې په باغبان او ځينې پر دواړو مالك او باغبان دي.<br>– باغواني د مودې په پای ته رسېدو، د عاقدينو ديوه په مړينه او په عذرونو سره پای ته رسيږي. | غوږ نيسي او په غور اوري. |
| | **کورنۍ کار:**<br>محترم استاد دې د زده‌کوونکي کتاب ته له کتلو وروسته زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي. | |

## شپاړلسم لوست:

**عنوان: وقف**

**پاڼه: ۱۱۵-۱۱۷**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥ دقیقې)**

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

الف:د وقف معنا د روا والي دلیل، حکم، رکن، شرطونه، د وقف ناظر او په دې هکله مسئلې وپېژني.

ب: ویل شوی لوست په خپل ځای کې د ټاکلو شرایطو سره سم پلی کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په وقف پورې تړلي اصطلاحات:

تبرع: د صله رحمی په خاطر پرته له عوضه چاته کوم کار سرته رسول یا څه ورکول تبرع بلل کېږي.

صدقه: الله ﷻ ته د نیږدیوالی په خاطر چاته مال ورکول صدقه ده.

وقف څه وخت لازمېږي؟

کله چې له شرایطو سره سم له هغه چا څخه چې د تصرفاتو اهلیت ولري وقف صادر شي بیا لازمېږي او د واقف حق ترې پرې کېږي، خو د امام صاحب په نظر وقف د یوه شی په داسې توګه بندول دي چې ملکیت یې د واقف او ګټه یې د هغه جهت وي چې ده ورته ښندلې وي او د امام صاحب په نزد وقف جایز غیر لازم تصرف دی، په دې معنا چې واقف بېرته خپل شي ته رجوع کولی شي، خو که حاکم یې په لزوم حکم وکړي، بیا دده په نزد هم لازم ګرځي، او همدا راز که وقف له مرګه وروسته زمانې ته مضاف شو، نو لازم ګرځي. او د صاحبینو په نزد وقف لازم تصرف دی، رجوع ورڅخه نه کېږي.

په وقف باندې رجوع: فقهاء کرام په دې نظر دي کله چې وقف لازم وګرځي، بیا ترې ګرځېدل جواز نلري، یعنې نه بیا پلورل کېږي، نه په ګرو ورکول کېږي، نه چاته بخښل کېږي او نه هم په میراث وړل کېږي.

د موقوف زکات: په وقف شوو مالونو کې لکه: ځاروي زکات نشته.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:** تخته، تباشیر، کتاب، قلم...

**د لوست لړۍ :**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | ښاغلی ښوونکی ټولګي ته د ننوتلو پر مهال:<br>• سلام اچوي ، ټولګی تنظیموي،حاضري اخلي او کورنی کار ګوري.<br>• د تېر لوست ارزونه :<br>الف:کومې ونې په باغوانۍ ورکول کېږي؟<br>ب:باغواني کله پای ته رسېږي؟ | ځواب ورکوي. |

| وخت | فعالیتونه | یادښت |
|---|---|---|
| | ج:د باغوانی یو حکم ووایاست.<br>د:د مالک او باغوان لپاره څه شروط دي؟<br>• نوي لوست ته زده‌کوونکي برابروي:<br>• مونږ په دې پوه شو چې څوک خپل باغ بل ته د میوې په ټاکلې برخه په باغوانۍ ورکولای شي، نن په دې خبره غږېږو چې یو څوک د خپل باغ میوې د خوراک لپاره خلکو ته بخښي او وايي زما د باغ میوه وقف ده، راځئ وګورو چې وقف څه ته وايي؟ اوځنګه ترسره کیږي ؟ | په غور اوري. |
| ۲۵<br>دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– د بسم الله الرحمن الرحيم وروسته ښاغلی ښوونکی:<br>• نوی عنوان او نېټه پر تخته لیکي ،زده‌کوونکو ته د غصب په هکله لنډ معلومات ورکوي اوریا اچوي.<br>• زده‌کوونکي ته هدایت ورکوي چې په پټه له ځان سره عبارت ووایې ، دې وخت نه په ګټه اخستنه محترم ښوونکی څنډیز عنوانونه اود وقف اساسې موضوعات پر تخته لیکي:<br>- د وقف معنا:<br>- د وقف حکم:<br>- د وقف رکن:<br>- د وقف شرطونه:<br>• محترم ښوونکی په زده‌کوونکو باندې پر لوړ اوازیویوپاراګراف عبارت لولي، د دوی لوستنه سموي پوښتنې اوستونزې یې ځوابوي.<br>• له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د لوستل شوي عبارت نه اخستل شوی مفهوم روښانه کړي.<br>• وروسته محترم ښوونکی له خپل پروګرام سره سم لوست تشریح کوي.<br>• زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې خپلې پوښتنې مطرح کړي اود استاذ دلارښوونې لاندې د وقف په مفاهیموخبرې اترې کوي،ترڅو موضوع ښه روښانه شي.<br>• هڅونې پلې کوي.<br>• په پای کې ممتاز زده‌کوونکي تقدیروي اود لوست ارزونه کوي. | پټه خوله کتاب مطالعه کوي.<br>د استاذ په لارښوونه په لوړ اواز دکتاب عبارت لولي، د استاذ پوښتنې ځوابوي.<br><br>پوښنې کوي او له استاذ سره په لوست کې ګډون کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| لس دقيقې | **ارزونه:**<br>۱- وقف په لغت او اصطلاح کې څه ته وایي؟<br>۲- د وقف شوي مال شرطونه څو دي؟ بيان يې کړئ.<br>۳- د وقف شوي مال ساتونکی باید څوک و اوسي؟<br>٤- د وقف ساتونکي دنده څه ده؟<br>٥- د جومات لپاره له وقف شوې ځمکې سره څه کيږي؟ | د استاد پوښتنو ته ځواب وايي. |
| پنځه دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>- وقف په لغت کې ساتلو ته وايي او د فقهاوو په اصطلاح کې د خپل مملوک مال ګټې خيراتول وقف بلل کيږي.<br>- د وقف جواز په احاديثو ثابت دی.<br>-د وقف رکن د واقف له لورې ايجاب او شرطونه يې ځينې د واقف او نور يې د موقوف مال پورې تړاو لري.<br>- يوازې زامنو ته مال وقفول مکروه دي.<br>- د جومات ځمکه د شيخينو په نظر ابداً جومات دی.<br>- د وقف لګښت له وقف شوي مال څخه کيږي. | غوږ نيسي او په غور اوري. |
| | **کورنی کار:**<br>ښاغلی ښوونکی دې له درسي کتاب څخه کورنی کار ورکړي. | |

## اوولسم لوست:

**عنوان: صلح (سوله)**

**پاڼه: ۱۱۸-۱۲۰**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥ دقیقې)**

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱- د صلحې تعریف، حکم، د روا والي دلیل، حکمت اود صلحې احکام وپېژني.

۲- ویل شوی لوست په خپل ځای کې له ټاکلو شرایطو سره سم پلی کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په صلحه پورې تړلي اصطلاحات:

تحکیم: د فقهاءوو په نظر چاته د حکم سپارل په داسې بڼه چې د لانجه کوونکو تر منځ خصومت له منځ یوسي تحکیم بلل کیږي. یعنې د پرېکړې واک ورکول یو چاته تحکیم دی. دا واک به یا د قاضي له خوا سپارل کیږي او یا به د لانجه کوونکو له لورې ټاکل کیږي. که د قاضي له لورې چاته حکم وسپارل شو دا تحکیم دی خو که متنازعینو خپله څوک د خپلې پرېکړې په خاطر وټاکل دا بیا صلحه بلل کیږي.

د تحکیم او صلحې تر منځ توپیر:

د تحکیم پایله قضایي حکم دی په داسې حال کې چې سوله هغه عقد دی چې د متنازعینو په خوښه تر سره کیږي. په صلحه کې یو لوری له خپل حق څخه تنازل کوي په داسې حال کې چې په تحکیم کې هیڅ تنازل نشته.

عفو: عفوه ترک، پرېښودلو او له منځه وړلو ته وایي، خلک داسې وایي: **"عفا الله عنک"** یعنې ستا ګناهونه دې خدای پاک محوه کړي. یا دا چې "ما حق عفوه کړ" یعنې له خپل حق څخه تیر شوم.

عفوه له سولې څخه په دې جلا کیږي چې عفوه له یو لوري راځي صلحه د جانبینو له اړخه ځینې داسې حالات هم پېښیږي چې صلحه او عفوه سره یوځای کیږي لکه د مال په بدل کې د وینې بخښل.

د صلحې ډولونه: لاندې صورتونه د صلحې له ډولونو څخه دي:

د کافرو او مسلمانانو تر منځ صلحه.

د حکومت او باغیانو تر منځ صلحه.

د ښځې او خاوند تر منځ صلحه کله چې د دوی تر منځ جنجال رامنځ ته شي.

په غیر مالي شخړو کې د جنجال کوونکو تر منځ صلحه.

په مالي شخړو کې د متخاصمینو تر منځ صلحه، چې ددې ځای د فقهې علم دی او زمونږ بحث هم په همدې کې دی.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشیر، قلم ...

**د لوست لړۍ :**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | – ښاغلی ښوونکی ټولګي ته د ننوتلوپه مهال :<br>• سلام اچوي ، ټولګی تنظیموي،حاضري اخلي او کورنی کار ګوري.<br>• محترم ښوونکی د څنو عمومي پوښتنو په مطرح کولو د تېر لوست ارزونه کوي.<br>الف:ستاسې په چاپېریال کې کوم ځای د وقف په نامه یادېږي؟<br>ب:د وقف ناظر څه دندې لري؟<br>• ښاغلی ښوونکی نوي لوست ته زده‌کوونکي برابروي:<br>• کله چې د واقف او د وقف ناظر تر منځ څه ستونزه پیداکېږي او خپل منځ کې سره قناعت نه کوي، د مشکل د حل لاره څه ده؟ سوله. راځئ چې وګورو سوله څه شی دی؟ اوپه کومو حالاتو کې ورته اړتیا پیدا کیږي اوڅنګه ترسره کیږي؟ | د محترم ښوونکي پوښتنې ځوابوي او دهغه خبرو ته غوږ ږدي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– له بسم الله الرحمن الرحیم څخه وروسته :<br>• نوی عنوان (صلحه) پر تخته لیکي، پر نوي عنوان لنډه رڼا اچوي .<br>• له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د کتاب پاڼه پرانیزي، په چوپه خوله له ځان سره عبارت ولولي،ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>• په دې وخت کې محترم ښوونکی څنډیز عنوانونه پر تخه لیکي:<br>– د صلحې تعریف:<br>– د صلحې حکم:<br>– د صلحې د روا والي حکمت:<br>– د صلحې حالات او ډولونه:<br>• بیا له مختلفوزده‌کوونکوڅخه غواړي، چې یو یو پاراګراف عبارت په لوړ اواز ولولي .<br>• محترم ښوونکی د زده‌کوونکو قرائت څاري اوتصحیح کوي ، له ځینو زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي چې دلوستل شوي عبارت څخه اخیستل شوی مفهوم په خپل تعبیربیان کړي.<br>• وروسته محترم ښوونکی لوست تشریح او ټول سرلیکونه روښانه کوي.<br>• زده‌کوونکو سره سوال ځواب اوخبرې کوي .<br>• هڅونې پلي کوي.<br>• زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې خپلې پوښتنې مطرح کړي،استاذ | په کتاب کې د نوې لوست پاڼه راواړوي اود استاذ په لارښوونو عمل کوي.<br><br>په لوړ اواز د کتاب عبارت لولي.<br><br>خپلې پوښتنې مطرح کوي اوپه لوست کې ګډون کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | هغه ځوابوي.<br>• په پای کې محترم ښوونکی زده‌کوونکي ارزيابي کوي. | |
| پوښتنو ته ځواب ورکوي. | **ارزونه:**<br>۱- سوله تعريف کړئ.<br>۲- د صلحې د روا والي دليل د قرآن او سنت څخه ووایاست.<br>۳- صلحه په څو ډوله ده؟ په لنډه توګه يې بيان کړئ.<br>٤- د صلحې لپاره يو مثال ووایاست.<br>٥- په صلحه کې د مدعي عليه حالات ووایاست.<br>٦- د صلحې اړوند احکام بيان کړئ. | لس دقيقې |
| غوږ نيسي او په غور اوري. | **د لوست لنډيز:**<br>-سوله په لغت کې سمولو ته وايي او د فقهاوو په اصطلاح کې هغه عقد چې شخړې له منځه وړي سوله بلل کيږي.<br>-د خلکو تر منځ صلحه کول ښه کار دی.<br>- د مدعي عليه د انکار په صورت کې سوله درې حالته لري:<br>الف- په دعوه اقرار<br>ب- له دعوې نه انکار<br>ج- په دعوه سکوت | پنځه دقيقې |
| | **کورنی کار:**<br>ښاغلی ښوونکی دې د زده‌کوونکو کتاب ته له کتلو وروسته زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي. | |

## اتلسم لوست:

**عنوان: شرکت**

**پاڼه: ۱۲۱-۱۲٤**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥ دقیقې)**

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

الف:د شرکت تعریف، د روا والي دلیل، حکمت او ډولونه وپېژني.

ب: ویل شوی لوست په خپل ځای کې پلی کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د شرکت د روا والي لپاره دلیل: د نبي اکرم ﷺ سره پخوا له نبوت څخه ابی السائب بن السائب په تجارت کې شریک و ، کله چې ورسره د مکې د فتحې په ورځ مخ شو، ورته یې وفرمایل: په خیر راغلې ای زما وروره او شریکه!. په یو بل حدیث شریف کې راځي چې زید بن ارقم او براء بن عازب سره شریکان وو، دوی دواړو سپین زر پر نقدو او نسیه واخېستل، کله چې دا خبره رسول الله ﷺ ته ورسېده. د نقدو اجازه یې ورکړه او نسیه یې رد کړه. له دویم حدیث څخه په څرګند ډول معلومېږي چې رسول الله ﷺ د شرکت اجازه ورکړېده.

د عقودو د شرکت نور ډولونه:

مطلق شرکت: یعنې ازاد شرکت هغه چې کوم خاص تجارت او ځای پورې یې مقید نکړي.

مقید شرکت: چې په یو خاص تجارت او بازار پورې یې مقید کړي.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، سوال او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشیر، قلم، کتاب...

**د لوست لړۍ :**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | -ښاغلی ښوونکی ټولګي ته دننوتلو پر مهال:<br>● سلام اچوي ،ټولګی تنظیموي،حاضري اخلي، کورنی کار او نظافت ګوري.<br>● د تېر لوست ارزونه کوي:<br>- په صلحه باندې څه پائله مرتبېږي؟<br>- د صلحې کوم صورت د بیعې دی؟<br>● نوي لوست ته زده‌کوونکي برابروي:<br>● ګرانو زده‌کوونکو!سوله مو وپېژندله چې څه شی او څنګه ده؟<br>● یوهغه مورد چې د جګړې سبب او صلحې ته پکې اړتیا پیدا کیږي د دوه | د استاذ پوښتنو ته ځواب وابي.<br><br>ځواب ورکوي او غور نیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| | یا څوتنو په تجارتي کاروبار کې ګډون (شرکت)دی چې د شرکت په نامه یادیږي. راځئ وګورو چې شرکت څه شی ؟ او څنګه جوړیږي؟ | |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– د بسم الله الرحمن الرحیم له ویلو څخه وروسته:<br>• محترم ښوونکی نوی عنوان (شرکت)او نېټه پر تخته لیکي،لنډ او عمومي معلومات د شرکت په هکله ورکوي.<br>• محترم ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې په پټه خوله له ځان سره عبارت ولولي، ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>• محترم ښوونکی د دې وخت نه په ګټه اخیستنه څنډیز او اساسي عنوانونه پر تخته لیکي:<br>– د شرکت تعریف:<br>– د شرکت د روا والي دلیل:<br>– د شرکت د روا والي حکمت:<br>– د شرکت ډولونه:<br>– د عقودو شرکت رکن:<br>– د عقودو شرکت ډولونه:<br>• محترم ښوونکی پر زده‌کوونکو په لوړ اواز یو یو پاراګراف لولي،عبارت یې سموي او ستونزې ورته حل کوي.<br>• محترم ښوونکی د لوست په تشریح کولو پیل کوي او له زده‌کوونکو سره درس په هکله خبرو کولو دوی ته هم په لوست کې برخه ورکوي.<br>• محترم ښوونکی زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې خپلې پوښتنې مطرح کړي ،استاذ هغه ځوابوي.<br>• هڅونې پلې کوي.<br>• په پای کې لوست او زده‌کوونکي ارزیابي کوي. | د استاد په لارښوونو عمل کوي.<br><br>په لوړ اواز له کتاب څخه عبارت لولي<br><br>له استاذ څخه د لوست په هکله پوښتنې کوي، په لوست کې ګډون کوي او غوږ نیسي |
| لس دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- شرکت په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ.<br>۲- د املاکو شرکت په څو ډوله دی؟ نومونه یې واخلئ.<br>۳- د عقودو شرکت تعریف کړئ. او څو ډولونه لري؟ نومونه یې واخلئ.<br>٤- د املاکو شرکت تعریف کړئ.<br>٥- د عنان او مفاوضې شرکت تر منځ توپیر بیان کړئ. | د استاد پوښتنو ته ځواب وایي. |

| | | |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>• شرکت په لغت کې ګډولو ته وایي خو د فقهاوو په اصطلاح کې په پانګه او ګټه کې د عقد پر بنسټ شریکوالی شرکت بلل کیږي.<br>• په عمومي ډول شرکت په دوه ډوله دی، چې یو ته د املاکو او بل ته د عقودو شرکت وایي.<br>• په شرکت کې به دواړه شریکوال یو د بل په مشوره کار ترسره کوي.<br>• د عقودو شرکت د یو عقد په واسطه رامنځ ته کیږي او درې ډولونه لري چې لومړی یې د مالونو، دویم یې د اعمالو او کارونو او دریم یې د وجوهو شرکت دی. | غوږ نیسي او په غور اوري. |
| | **کورنۍ کار:**<br>ښاغلی ښوونکی دې له درسي کتاب څخه زده کونکو ته کورنی کار ورکړي. | |

## نولسم لوست:

**عنوان: د وجوهو شرکت**

**پاڼه:** ۱۲۵-۱۲۷

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

الف: د وجوهو شرکت تعریف، د عقودو او اموالو شرکت شرطونه او شرکت باطلوونکي وپېژني.

ب: ویل شوی لوست په خپل ځای کې پلي کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د شرکت په اړوند عام احکام:

په اصل (پانګه) او ګټه کې ګډون: د شرکت عقد حکم دادی چې پانګه او له دې څخه چې څه ترلاسه کېږي هغه باید د دواړو ګډ وي.

د عقد عدم لزوم: معنا داچې هر یو له شریکانو څخه عقد فسخه کولای شي، خو په دې شرط چې مقابل لوری خبر کړي، ځکه چې په دې کې د دواړو ګټه ده.

د شریک لاس د امین لاس دی: په دې باندې ټول فقهاء یوه خوله دي چې د شرکت په حال کې د شریک لاس د امین لاس دی. په دې باندې دا مرتبه ده، که چېرې یو شی پرته دده له لاس وهنې او تېري څخه له منځه ولاړ، تاوان نلري.

د ګټې مستحق کېدل: یو سړی په درې لارو د ګټې مستحق ګڼل کېږي: په مال، کار او ضمانت.

فاسد شرکت: فاسد شرکت هغه شرکت دی چې د صحت له شرائطو څخه کوم یو نېمګړی وي، لکه په عاقدینو کې د اهلیت نشتوالی.

**د تدریس طریقه:**

تشریح، پوښتنه او ځواب او تمثیل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشیر، کتاب، قلم...

**د لوست لړۍ :**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | ښاغلی ښوونکی ټولګي ته د ننوتلوپر مهال :<br>• سلام اچوي ،ټولګی تنظیموي،حاضري اخلي او کورنی کار ګوري.<br>د تېر لوست ارزونه کوي:<br>الف:په عمومي توګه شرکت څو ډولونه لري ؟<br>ب:د عقودو د شرکت لاندې کوم شرکتونه راځي؟<br>ج:اجباري او اختیاري شرکتونه د کومو شرکتونو له ډولونو څخه دي. | ځواب ورکوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | • نوي لوست ته زده‌کوونکي برابروي پوښتې:<br>- خلك په څه شي تجارت كوي؟<br>- په پيسو!<br>- ځيني خلك پيسې نلري هم تجارت كوي.<br>- له خلكو نه به يې راټولې كړې وي.<br>- نه داسې نه ده! ځيني په خپل اثر او رسوخ د خلكو نه مال اخلي.<br>- هو استاذه! په دې ډول كه څوتنه راټول شي،خپل اغيزمنتوب او رسوخ استعمال كړي او سودا واخلي دا د وجوهو شركت دی.<br>راځئ چې وګورو څنګه جوړيږي؟ | د استاذ پوښتنو ته ځواب وايې،په بحث كې ګډون كوي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې كول:**<br>- له بسم الله الرحمن الرحيم څخه وروسته محترم ښوونكی:<br>• نوی عنوان (د وجوهو شركت)او نېټه پر تخته ليكي.<br>• زده‌كوونكوته هدايت كوي چې په پټه خوله له ځان سره كتاب مطالعه كړي، له وخت نه په ګټه اخستنه محترم ښوونكی څنډيزعنوانونه او د وجوهو دشركت اساسې ټكي پرتخته ليكي:<br>- د وجوهو شركت تعريف:<br>- د اعمالو او ابدانو شركت:<br>- د عقودو د شركت تعريف:<br>- د شركت باطلوونكي:<br>• وروسته له زده‌كوونكوڅخه غواړي چې په لوړ اواز له كتاب څخه يو يو پاراګراف عبارت ولولي.<br>• محترم ښوونكی د زده‌كوونكو لوستنه څاري، عبارتي ستونزې يې حل كوي او ورڅخه غواړي چې له عبارت څخه لنډ اخيستل شوی مفهوم په خپل تعبير بيان كړي.<br>• وروسته محترم ښوونكی د لوست په شرحه پيل كوي اوټولې برخې يې روښانه كوي، له زده‌كوونكو سره د موضوع په هكله خبرې كوی او دوی ته هم په لوست كې ګډون وركوي.<br>• زده‌كوونكو ته وخت وركوي چې د موضوع په هكله پوښتنې وكړي،استاذ هغه ورته ځوابوي<br>• هڅوني پلې كوي.<br>• په پای كې محترم ښوونكی لوست او زده‌كوونكي ارزيابي كوي. | د استاد په لارښوونو عمل كوي.<br><br>په لوړ اواز له كتاب څخه عبارت لولي.<br><br>خپلې ستونزې استاد ته وايې او له ښوونكي سره په لوست كې ګډون كوي. |

| لس دقيقې | **ارزونه:**<br>۱- د وجوهو شرکت تعریف کړئ.<br>۲- د ابدانو او اعمالو شرکتونه شرحه کړئ.<br>۳- د اعمالو او ابدانو د شرکت لپاره مثال ووایاست.<br>٤- د عقودو د شرکت شرطونه بیان کړئ.<br>٥- په کوم شرکت کې د کار کول شرط ګڼل کیږي؟<br>٦- په کومو حالاتو کې شرکت باطلیږي؟ | د استاد پوښتنو ته ځواب وایې. |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>• پرته له پانګې له خپلې پیژند ګلوی څخه په ګډه کولو د تجارتي مالونه اخېستل د وجوهو شرکت بلل کیږي.<br>• د خیاطانو او نجارانو یا داسې نورو کارګرانو( ټیکدارانو) شرکت د ابدانو او اعمالو شرکت دی.<br>• د عقودو شرکت خپل ځانګړي شرطونه لري.<br>• د مالونو د شرکت شرطونه د عقودو د شرکت له شرطونو څخه جلا دي.<br>• عنان شرکت کې هر شریک د اخېستلو او پلورلو واک لري.<br>• شرکت په درې شیانو باطلیږي:<br>• په مباحو شیانو کې شرکت نه صحیح کیږي. | غوږ نیسي او د زړه په غوږو اوري. |
|  | **کورنی کار:**<br>ښاغلی استاد دې درسي کتاب ته له کتلو وروسته زده‌کوونکو ته کورنی کار ورکړي. |  |

## شلم لوست:

**عنوان: شفعه**

**پانه:** ۱۲۸-۱۳۱

**وخت:** يو درسي ساعت (٤٥ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

الف: د شفعې معنا، مشروعيت، حکم، اړوند اصطلاحات، سبب، ثبوت، شرطونه، د طلب ډولونه يې، احکام ، د سقوط حالات اود شفعې په هکله نور مسائل وپېژني.

ب:دشفعې احکام اومسائل په خپل ټولنيز ژوند کې پلي کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

له شفعې سره تړلي الفاظ:

جبري بيع: د حق په مقابل کې په زور باندې په چا د شي پلورل جبري بيع بلل کيږي، دا کار به يا د ضرر د دفع او يا د عام مصلحت د رېښتيني کولو لپاره ترسره کيږي.

شفعه په څه شي کې ثابتيږي؟ زموږ په مذهب کې شفعه په لاندې شيانو کې ثابتيږي:

لومړی: کورونه.

دويم:ځمکې.

د مسلمان شفعه په ذمي او د ذمي په مسلمان باندې ثابتيږي، ځکه چې قاضي شريح دا پرېکړه د ذمي په حق کې د صحابه کرامو په وړاندې کړې وه. کله چې په يوه ځمکه باندې شفيعان ډېر شي او د دوی شفعې سبب هم يو وي، دوی ته به د ملکيت په اندازه ونډه ورکول کيږي. خو کله چې د شفيعانو د شفعې سبب مختلف وي، بيا د دوی ترتيب ته ليدل کيږي، نو قوي په کمزوري باندې وړاندې کيږي، هغه څوک چې په نفس مبيعه کې شريک وي له هغه چا څخه چې د مبيعې په حقوقو کې شريک وي وړاندې دی همدا شان نور هم.

د مشفوعې ځمکې د لاسته راوړلو لارې:

۱- د مشتري له لوري په خپله خوښه شفيع ته د مشفوعې ځمکې تسليمول.

۲- د قاضي د پرېکړې په واسطه شفيع ته د مشفوعې ځمکې سپارل.

د شفعې په ميراث وړل: کله چې شفيع وروسته د مشفوعې ځمکې له پلورلو او د شفعې له اخېستلو وړاندې مړ شو، وارثان يې د شفعې اخېستلو حق نه لري، لنډه دا چې شفعه په ميراث نه وړل کيږي.

**د تدريس طريقه:**

تشريح، سوال او ځواب او تمثيل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشير، کتاب، قلم...

د لوست لړۍ :

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| پنځه دقیقې | ښاغلی ښوونکی ټولګي ته د ننوتلوپه مهال:<br>• سلام اچوي، ټولګی تنظیموي،حاضري اخلي ،کورنی کار او نظافت ګوري.<br>• د تېر لوست ارزونه کوي:<br>الف:د وجوهو شرکت کوم شرکت دی؟<br>ب:شرکت په څه شي باطلیږي؟<br>• محترم ښوونکی نوي لوست ته زده‌کوونکي برابروي:<br>• تیرلوست کې پدې پوه شوي یاست چې دوه تنه کولای شي ګډه تجارت وکړي، خو هغه فلاني او فلاني یو کور په ګډه اخېستی و، یو تن ورته را اوچت شو هغه یې بېرته ترې وګرځاوه، دا دومره زورور څوک و استاذه؟ هغه سړی زورور نه و، حق زورور و. هغه تن شفیع و او د شفعې په حق یې ترې راستون کړ. راځئ چې شفعه او شفیع وپېژنو. | سلام،حاضري او داستاذ پوښتنې ځوابوي.<br>غوږ نیسی او له ښوونکي سره په لوست کې ګډون کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– له بسم الله الرحمن الرحیم څخه وروسته:<br>• محترم ښوونکی نوی عنوان (شفعه) پر تخته لیکي.<br>• زده‌کوونکوته هدایت ورکوي چې د شفعې درس عبارتونه په چوپه خوله له ځان سره ولولي اوستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>• محترم ښوونکی دې فرصت نه په ګټه اخیستنه څنډیزعنوانونه او د درس اساسي ټکي په تخته لیکي:<br>– د شفعې تعریف:<br>– د شفعې د مشروعیت حکمت:<br>– د شفعې حکم:<br>– د شفعې اصطلاحات:<br>– د شفعې سبب:<br>– په شفعه کې د ګډون ډولونه:<br>– د شفعې ثبوت:<br>– هغه شیان چې شفعه پکې نه ثابتیږي:<br>– د شفعې د طلب ډولونه:<br>– د شفعې سقوط:<br>• وروسته محترم ښوونکی یو یو پاراګراف پر زده‌کوونکو په لوړ اواز لولي،د دوی لوستنه سموي او ستونزې یې حل کوي. | د استاد له لارښوونو سره سم عمل کوي<br>په لوړ اواز له کتاب څخه عبارت لولي<br>استاذ پوښتنو ته ځواب وایې اوغوږ نیسي.<br>د خپلو درسي ستونزوپه هکله پوښتنې کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | • د زده‌کوونکو څخه د لوست مفهوم پوښتنه کوي.<br>• هڅوني پلې کوي.<br>• بیا دلوست په تشریح پیل او د لوست ټولې برخې روښانه کوي.<br>• ځنې موضوعات په ممتازو زده‌کوونکو تکراروي،دوی تقدیروي او نور تشویقوي.<br>• په پای کې محترم ښوونکی زده‌کوونکي ارزیابي کوي. | استاد سره په لوست کې ګډون کوي. |
| لس دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- شفعه په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ.<br>۲- شفعه څه حکم لري؟<br>۳- د شفعې د روا والي حکمت څه دی؟<br>٤- شفعه په څه شي ثابتیږي؟ | د استاد پوښتنو ته ځواب واېي. |
| پنځه دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>- شفعه په لغت کې زیادت ته وايي خو د فقهاوو په اصطلاح کې د ګاونډي له ضرر څخه د خلاصون په خاطر د ځمکې د تملك حق په زور سره د مشتري نه اخېستل شفعه بلل کیږي.<br>- شفعه د ګاونډي د ضرر د دفع په خاطر مشروع شوې ده.<br>- د شفعې غوښتل یو روا حق دی چې د شفیع، مشفوع، مشفوع به او مشفوع علیه باندې ولاړه ده.<br>- د پلورل شوې ځمکې سره پیوست والی د شفعې سبب او همدا راز یې په حقوقو کې شرکت هم سبب شمېرل کیږي.<br>- په بلا عوضه پلورل شوې ځمکه، دولتي ځمکه او د خپلوانو تر منځ چې کومه ځمکه ویشل کیږي په هغې کې شفعه نه ثابتیږي.<br>- د شفعې طلبونه درې دي چې یو ته مواثبت، بل ته د اشهاد او درېم ته یې د تملك طلب وايي.<br>- د مواثبت طلب په پرېښودلو شفعه ساقطیږي. | غور نیسي ،په غور اوري او لنډیز زده کوي. |
| | **کورنی کار:**<br>محترم استاد دې له درسي کتاب څخه زده‌کوونکو ته کورنی کار ورکړي. | |

## **یوویشتم لوست:**

**عنوان: د ځان نه دفاع کول**

**پاڼه: ۱۳۲-۱۳٤**

**وخت:** یو درسي ساعت (٤٥ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

الف: له ځان څخه د دفاع د روا والي دلیل، د شرعي دفاع حالات، شرطونه او د شرعي دفاع حالات وپېژني.

ب:ویل شوی لوست په خپل ټولنیز ژوند او ځای کې پلي کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

تأدیب: د (اَدَّبَهُ) مصدر دی چې د ادب ښودلو او په بدی باندې د رټنې ورکولو معنا لري.

د تأدیب ولایت چاته دی؟

۱- په عام ولایت کې د تأدیب حق قاضي او دده معاونینو ته دی، نو که څوک کوم داسې ناروا کار وکړي چې حد پکې نه وي، قاضي یې د تأدیب حق لري.

۲- په خاص ولایت کې ولي د تأدیب حق لري، یعنې پلار، نیکه، وصي.

۳- ښوونکی دا حق لري چې خپل زده‌کوونکی تأدیب کړي.

٤- د زوجیت په حقوقو کې خاوند پر ښځې باندې د تأدیب حق لري.

له حاکم څخه پرته د نورو خلکو د تأدیب وختونه:

۱- خاوند به خپلې ښځې ته هغه وخت تأدیب ورکوي چې د زوجیت له حقوقو څخه سرغړونه کوي، لکه: د خاوند له اجازې پرته وتل... او نور.

۲- ولي د خپل ماشوم د تأدیب حق هغه وخت لري چې لمونځ او اودس نه کوي او یا داسې نور غیر شرعي کارونه، لکه: شراب څښل... او نور، بیا یې تأدیبولای شي.

۳- هغه ښوونکی یا استاد د ماشوم د تأدیب حق لري چې ولي هغه ښوونکي ته د تعلیم لپاره استولی وي.

د تأدیب لارې: نظر اشخاصو ته د تأدیب لارې جلا جلا ډولونه لري:

۱- د امام تأدیب: د امام لپاره د رعیت تأدیبول د هغوی د ګټو ساتل او د عدالت د اصولو له رعایتولو سره سره جواز لري.

۲- د ښځې د تأدیب لارې:

الف- وعظ او نصیحت

ب- د بسترې جلا کول

ج- وهل (داسې چې زخم او عیب پیدانکړي)

د پورتني ترتیب مراعتول په خاوند باندې لازم دي، ځکه چې آیت پکې راغلی.

۳- د ماشوم د تأدیب لارې:

کله چې کوم ولي خپل ماشوم تأديبوي، لومړی به ورته خبرې کوي، بيا به يې رټي، که له وهلو پرته ماشوم نه اصلاح کېده، نو بيا يې داسې وهل هم روا دي چې زخمي يې نکړي. البته له لس کلن ماشوم څخه د کم عمر ماشومانو وهل جواز نلري.

**د تدريس طريقه:**

تشريح، سوال او ځواب او تمثيل.

**درسي مواد:**

تخته، تباشير، قلم، کتاب...

**د لوست لړۍ :**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| پنځـــــه دقيقې | -ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو وروسته:<br>• سلام اچوي ،ټولګی تنظيموي،حاضري اخلي، کورنی کار او نظافت ګوري.<br>• د تېر لوست ارزونه کوي:<br>الف:شفعه څه وخت ثابتېږي؟<br>ب:د شفعې حق کوم وخت ساقطېږي؟<br>• نوي لوست ته زده کوونکي هڅوي، لکه:<br>• کله کله دا پېښېږي چې سړي ته په شفعه کې ستونزې پيداشي او لانجه جګړه رامنځ ته شي، نو په دې وخت کې سړی خپلې دفاع ته اړ کېږي، راځئ وګورو چې څوک به څنګه له ځان څخه دفاع کوي. | ځواب ورکوي<br><br>غوږ نيسي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>– محترم ښوونکی له بسم الله الرحمن الرحيم څخه وروسته:<br>• نوی عنوان ( له ځان څخه دفاع کول) په تخته ليکي.<br>• زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په پټه خوله له ځان سره عبارت ووايي.<br>• دې لړۍ کې محترم ښوونکی څنډيز اواساسې عنوانونه پر تخته ليکي:<br>- د دفاع د روا والي دليل:<br>- د شرعي دفاع حالات:<br>- د شرعي دفاع شرطونه:<br>• وروسته محترم ښوونکی په مختلفو زده کوونکو باندې په لوړ اواز يو يو پاراګراف عبارت لولي،د دوی عبارت سموي او ستونزې ورته حلوي.<br>• له زده کوونکو څخه غواړي چې د لوستل شوې عبارت نه اخېستل شوی مفهوم لنډ بيان کړي. | د استاد له لارښوونې سره سم چوپه مطالعه کوي.<br><br>په لوړ اواز له کتاب څخه عبارت لولي.<br><br>استاد سره په لوست کې ګډون کوي، پوښتنې يې |

| | | |
|---|---|---|
| | • وروسته محترم ښوونکی لوست تشریح اوټولې برخې یې روښانه کوي.<br>• هڅوني پلې کوي.<br>• زده کوونکوته فرصت ورکوي چې خپلې پوښتنې مطرح کړي،استاذ هغه ځوابوي.<br>• په پای کې محترم ښوونکی زده کوونکي ارزيابي کوي. | ځوابوي، خپلې پوښتنې او درسي ستونزې استاذ ته وايي. |
| لس دقيقې | **ارزونه:**<br>۱- له ځان څخه دفاع په کوم دليل روا شوې؟ خپل معلومات د قرآن او سنت په رڼا کې بيان کړئ.<br>۲- د دفاع حالات کوم دي؟ په ګوته يې کړئ.<br>۳- شرعي دفاع کوم شرطونه لري؟ په لنډ ډول يې بيان کړئ. | پوښتنې ځوابوي. |
| پنځه دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>له ځان څخه دفاع کول په قرآن او حديث ثابت دي.<br>-کله چې څوک د بل چا په مال، ځان او نفس تېری کوي، مقابل لورې ته پکار ده چې له خپل توان سره سم څنګه چې مناسب وي هم هغه شان دفاع وکړي، چې لومړی به کمزورې لار سنجوي.<br>-شرعي دفاع خپل شرطونه لري چې په لاندې ټکو کې را لنډېدای شي:<br>الف- تېری او تجاوز به جرم وي، نو د پلار تأديب تېری نه دی.<br>ب- تېري به سمدلاسه صورت نيولی وي، تهديد به نه وي.<br>ج- خپل مخنيوی به په مناسبه اندازه کوي. | غوږ نيسي اوپه غور اوري. |
| | **کورنی کار:**<br>ښاغلی ښوونکی دې له درسي کتاب څخه زده کوونکو ته کورنی کار ورکړي. | |

## دوه ويشتم لوست:

**عنوان:** وصيت
**پاڼه:** ۱۳۵-۱۳۷
**وخت:** یو درسي ساعت (٤٥ دقيقې)
**موخې:** زده‌کوونکي باید:
الف: د وصيت معنا، ډولونه، د روا والي دليل، حکم، رکن، شرطونه او مبطلات وپېژني.
ب: ويل شوی لوست په خپل ځای کې پلي کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**
ايصاء: ايصاء دا د اوصي مصدر دی چې په اصطلاح کې د مرګ نه وروسته کړنو لپاره د ځان پر ځای د بل چا ټاکل دي په داسې توګه چې دده د صغيرانو او د مال سرپرستي به کوي.
وصيت سره د ايصاء توپير دادی چې په وصيت باندې يو سړی وروسته د وصيت کوونکي د مرګ د مال مالك کېږي، خو په ايصاء کې دده له مرګ نه وروسته د مړي کارونه په غاړه اخلي.
د وصيت د مشروعيت حکمت: په دنيا کې د خير يادول او په آخرت کې د ثوابونو او لوړو درجو ګټل. همدا راز د نږدې خپلوانو سره کوم چې دده وارثان نه وي، صله رحمي کول د وصيت د مشروعيت د حکمتونو څخه دی.
په ګټه اخېستلو باندې وصيت: يو چاته په ګټو اخېستلو باندې وصيت کول روا دي او دا ګټه په څلورو ډولونو اخېستل کېږي: خدمت، اوسېدل، سپرېدل او غله دانه اخېستل.
په عين هم وصيت کول جواز لري او اعيان په درې شيانو کې راتلای شي چې عبارت دي له: ځمکې، حيوان او سامان آلاتو څخه.
په دې لاندې شيانو وصيت کول روا نه دي:
۱- په ګناهونو باندې چاته وصيت کول روا نه دی، لکه يو څوك داسې وصيت وکړي چې زما په درېمه برخه مال باندې زما له مرګ نه وروسته کليسا اباده کړي.
۲- د شي په فساد او له منځه وړلو باندې وصيت.
۳- د مال په تبذير باندې وصيت کول، يعنې پرته د حاجت نه د مال په مصرفولو باندې چاته وصيت کول روا ندي.
٤- د خپل مړ جسد په انتقال باندې وصيت کول چې بل ښار ته د خښولو لپاره انتقال شي دا کار هغه وخت روا ندی چې لګښت ته اړتيا ولري.
٥- پرته له مقبرې څخه په کور کې ځان خښولو وصيت کول جواز نلري. [۲]
**د تدريس طريقه:** تشريح، سوال او ځواب او تمثيل.
**درسي مواد:** تخته، تباشير، قلم، کتاب...

[۲] النتف فی الفتاوی، کتاب الوصاية ۸۱۴/۲

**د لوست لړۍ :**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| پنځـــه دقیقې | - ښاغلی ښوونکی ټولګي ته دی ننوتلو وروسته:<br>- سـلام اچـوي ،ټـولګی تنظیمـوي،حاضـري اخلـي، کـورنی کـار او نظافـت ګوري.<br>• د تېر لوست ارزونه به کوي، لکه:<br>- شرعي دفاع څه حکم لري؟<br>- د شرعي دفاع شرطونه څه دي؟<br>- په کوم حالت کې سړی له ځان څخه دفاع کوي؟<br>• نوي لوست ته زده‌کوونکي هڅوي، لکه:<br>• په دې پوه شوي یو چې هېڅوك دا نه مني، چې بل دې ورڅخـه پـه زور او زبردستۍ مال واخلي، که څوك داسې کار تـه تکـل وکـړي، نـو لـه خپـل ځان، ناموس او مال نه دفاع کول په هغـه شـرطونو چـې مـونږ ولوسـتل جـواز لري، خو یو سړی کولای شي چې په خپله خوښه چاته خپل مال په ژونـد یـا له مرګ نه وروسته وبخښي، په ژوند کې د مال بخښلو په هکله مـو خبـره پـه هبه کې کړې، نن په هغه بخښنه بحث کـوو چـې لـه مـرګ نـه وروسـته پلـي کېږي او دې ته وصیت وایي، راځـئ وګـورو چـې وصـیت څـه شـی دی؟ او څنګه کېږي؟ | ځواب ورکوي.<br><br>د ښوونکې خبرو تـه غـوږ ږدې او پوښـــتنې ېـــې ځوابوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>**-محترم ښوونکی** د بسم الله الرحمن الرحیم څخه وروسته:<br>• نوی عنوان(وصیت) پر تخته لیکي،دوصـیت مفهـوم زده‌کوونکـو تـه پـه لنډو ټکو تشریح کوي او معلومات ورکوي.<br>• زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چـې د وصـیت عبـارات لـه درسـې کتـاب څخه په پټه خوله له ځان سره ووایي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>• دې وخت نه په ګټه اخستنه استاذ اساسې څنډیز عنوانونه پر تخته لیکي:<br>- د وصیت معنا:<br>- د وصیت ډولونه:<br>- د وصیت د روا والي دلیل:<br>- د وصیت د روا والي حکمت:<br>- د وصیت حکم:<br>- چاته به وصیت کېږي؟<br>- د وصیت رکن:<br>- د وصیت شرطونه: | غوږ ږدی، له ځان سره پـه پټه خوله دکتـاب عبـارت لولي.<br><br>لـه اسـتاد سـره پـه لوسـت کـــې ګـــډون کـــوي او پوښتنې یې ځوابوي. |

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
| --- | --- | --- |
| | - د وصیت باطلوونکي:<br>• وروسته محترم ښوونکی په زده‌کوونکو په لوړ اواز یو یو پاراګراف عبارت لولي. له زده‌کوونکو څخه غواړي چې له عبارت څخه اخیستل شوی مفهوم روښانه کړي.<br>• بیامحترم ښوونکی د لوست ټولې برخې تشریح کوي.<br>• زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې خپلې پوښتنې مطرح کړي، استاذ هغه ورته ځوابوي.<br>• په ممتازو زده‌کوونکو د درسي موضوع اساسي ټکي تکراروي.<br>• هڅوني پلې کوي.<br>• د زده‌کوونکو له تقدیر او تشویق وروسته هغوی ارزیابي کوي.. | په لوړ اواز له کتاب څخه عبارت لولي اوپه لوست کې ګډون کوي. |
| لس دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- وصیت په لغت او اصطلاح کې څه ته وایي؟<br>۲- وصیت په څو ډوله دی؟ د هر یو تعریف ووایاست.<br>۳- د وصیت حکم داندازې سره بیان کړئ.<br>٤- وصیت کوونکی څو شرطونه لري؟ ویې ووایاست.<br>۵- د وصیت باطلوونکي څو دي؟ بیان یې کړئ. | ځواب ورکوي. |
| پنځه دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>- وصیت په لغت کې وعدې ته وایي او د فقهاءوو په اصطلاح کې له مرګ نه وروسته د چا لپاره په ځان مال لازمول وصیت بلل کیږي.<br>- وصیت په دوه ډوله دی چې یو ته مطلق وصیت او بل ته یې مقید وایي.<br>- وصیت کول په قرآن، سنت، اجماع او عقل ثابت دی.<br>- وصیت د دنیا او آخرت د خیر ښېګڼې لپاره مشروع شوی دی.<br>- وصیت کول غوره او مستحب عمل دی.<br>-وصیت به اجنبي ته کیږي.<br>- وصیت کوونکی به عاقل او بالغ وي او نه به دومره پور وړی وي چې ټول مال یې پکې له منځه ولاړ شي.<br>- د وصیت کوونکي اهلیت له منځ تلل یا د خپل وصیت نه ګرځېدل او پر داسې شرط پورې د وصیت تړل چې پوره نشي د وصیت له مبطلاتو څخه شمېرل کیږي. | غوږ نیسي ،په غوراوري اولنډیز زده کوي. |
| | **کورنی دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی دې له درسي کتاب څخه زده‌کوونکو ته کورنی دنده ورکړي. | |